١١

رب السجن احب الي مما يدعونني اليه

# دافغانستان زندانونه

# او

# ناويلي حقايق



خپروونکی : دفرهنګي چارو کميسيون
دتاليف اوترجمې څانګه

بسم الله الرحمن الرحیم

# دپیــــل خبــرې

الحمد لله رب العلمین، والصلوة والسلام علی سید المرسلین، محمد وعلی آله واصحابه اجمعین وبعد :

زنـدان زنـدان وي او بیـا د دښـمن زنـدان، دښـمن هـم داسـي چې هیڅ ډول انساني او اخلاقي معیارونه نه پیژني.

هــوکي ! امریکایــان، هغــوی چــې بشــریت یــې لــه یــو ســتر نــاورین ســره مخــامخ کــړی دی، د مظلومــانو وینــي یــې زبیښــلي دي، کړولـي یـې دي، بـي کـوره کـړي یـې دي او بـالاخره د داسـي تـورو تمبـو شـا تـه یـې اچـولي دي چې کلونـه کلونـه یـې د مـړي او ژونـدي څـرک نـه معلـومیږي، هغـوی چــې د نــورو د ژونــد د رڼــا ډیــوي مــړي کــوي خــو خپلـي بیـا د دغـو بـي وزلـو او مظلومـانو لـه وینـو بلـي سـاتي، هغـوی چې ځانونـه پـه نـړۍ کې د بشـري حقونـو علمبـرداران بـولي، خـو خپلـه

بیا لـه بشـر سره څـه ډول چلنـد کـوي، پـه زنـدانونو کـې یـې څـه تیریـږي او له بندیانو سره یې چال چلند څه ډول دی ؟

لـس کالـه وړانـدې چـې امریکـایي یرغلګـرو دافغانسـتان پـه پـاک حـریم نـاولي قدمونـه کیښـوول، دهـوايي ناترسـه بمبـاریو، ډلییـزو وژنـو اونـورو ډول ډول مظـالمو اوتیریوترڅنـګ یـې دهغـو افغانـانو چـې اسـلامي او افغـاني غروراوجذبـه یـې لرلـه، کورونـواو جونګړوتـه پـه تـوره شـپه کـې پـه لـوی بربریـت او دهشـت ور ننوتـل، ددینـي مقدسـاتواو افغـاني عنعنـاتو پـه سـپکاوي سـربیره یـې هغـه مظلومـان دخپلـو کورونـو پـه غـولي اودخپلـو کورنیـودغړو پـه وړانـدې پـه ډیـرې بیـدردي زولانـه، تـوري کڅـوړې یـې ور پـه سـر اودګوانتنـامو، بګـرام، کنـدهار اونوروپټـو اوښـکاره جهنمـي زندانونـه وغورځـول اوهغـه شـکنجي یـې ورکـړي چـې دبشـریت پـه تـاریخ کـې یـې سـاری نـه لیـدل کیـږي ؛ دداډول شـکنجه شویوافغانانوشمیراوس ترلکونواوښتی اولادوام لري.

ستاسـو پـه لاس کـې کتـاب لکـه څنګـه یـې چـې لـه نـوم څخـه واضـحه ده، پـه افغانسـتان کـې دزنـدانونو پـه اړه حقـائق او واقعیتونـه راسـپړي، دافغانسـتان پـه تېرد بـرش کلـن څپڅپانـده حالـت کـې دغمیـزې یـوه ډیـره بوږنـوونکې او لـړ راسـپړل شـوې خـوا، پـه دې هیـواد کـې دزنـدانونو دننـه ترسـره شـوي جنایـات او مظـالم دي، پـه تیـرو دریولسـیزو کـې پـه ځـانګړي ډول دروسـي او امریکـایي یرغلونـو پـه مهـال د افغانسـتان پـه زنـدانونو کـې ددې مـؤمن او مجاهـد اولـس پـه وړانـدې خـورا ډیـر او بـې سـاري جنایـات ترسره شوي دي، چـې پـه عامـه رسـنیو کـې انعکـاس دنشـت برابـر دی
.

دا کتاب په مجموع کې یوه کوچنۍ هڅه ده، تر څو د زندانونو د تورو تمبو شاته، ترسره کیدونکي جنایات رابرسیره او د عاملینو څیرې یې نړیوالو او د افغانستان مسلمان ملت ته وروپیژني.

په تیرو دریو لسیزو کې، د افغانستان زندانونه که له یوې خوا د دښمن د جرمي کړنو او وحشت شاهدان وو له بلې خوا یي زمونږ د مجاهد اولس د اسیرو شاځلمو د صبر، استقامت، عزم او تدبیر ډېرې هیښنوونکې حماسې هم لیدلي دي، په دې کتاب کې به د مجاهد اولس میړنیو زندانیانو د قربانیو او زندان ماتوونکو حماسو په خاص ډول د کندهار د زندان د پرلپسي ماتیدو په اړه هم ډیر څه ولولئ، او له دې علاوه به له زندان او حبس سره تړلې مسئلې، خاطرې او لارښوونې هم په کې وموموئ.

د افغانستان د اسلامي امارت د فرهنګي چارو کمیسیون ویاړي، چې د کتاب د مینه والو د تندې خړوبولو لپاره د کتابونو د چاپ دلړۍ په جاري ساتلو توانیږي، او د دې سلسلې (۱۱) شماره کتاب د چاپ په ګېڼه پسولي، فرهنګي کمیسون تردې وړاندې هم ترلسو ګڼو پورې مختلف کتابونه چاپ کړي، خو په پخوانیو چاپ شویو کتابونو (مسلسله شمیره) نه ده لیکل شوې.

په پای له ګرانو همکارو ورونو هریو مؤمن اقبال، حسن مومند، عمران خلیل، سید سعید، غزنیوال، محمد الیاس عاصم او عبدالرؤف حکمت څخه د زړه له تله مننه کوي چې د کتاب په اوډون او جوړښت کې یې خپله همکاري ونه سپموله، ټولو ته دې الله تعالی د خیر بدله ورکړي.

په درښت

خپرندوی

# لــومــړی فـصــل

## په اسلام کې دزندان حيثيت او داسيرانو سره چلند

زموږ دا ليکنه دوه برخې لري لومړۍ برخه کې پدې غږېږو چې دمسلمانانو سره دا سير شوي تن سره به دمسلمانانو سلوک څه وي؟ او په دوهمه برخه کې به پدې وغږېږو چې دکفارو سره دا سيرشويو مسلمانانو په اړه د نورو مسلمانانو مسؤليت څه دی؟

خو په اصل مقصد دپيل نه وړاندې دا وضاحت ضروري بولم چې اسلام پدې اصرار نه کوي چې مقابل جانب دې خامخايا ووژل شي او يا دې اسير شي، بلکې اسلام حربي کفارو ته هم دوژل کېدو نه دځان خلاصولولار ښودلی او هم يې ورته دا سير کېدونه دخلاصون لار ور په ګوته کړی ده، نو اسلام وايې چې که چېرته دښمن دځان نه ددفاع کولو او زموږ سره دجنګېدلو توان درلودخوبيا يې هم اسلام قبول کړ اوموږ ته يې ځانونه وسپارل نو دشرعي لارښوونو له مخې ددوئ اسلام داعتبار وړ دی، دوئ بــه آزاد ګڼــل کيــږي، مالونــه او ځانونــه بــه يــې دنــورو مسلمانانو په څېر محفوظ وي او دوئ به نشي اسيران کېدای، اګرچې پرکفر دپاتې کېدو اوپرضد يې دجنګ کولو پـه صورت کې دوئ تـه دماتې ورکولو غالب ګومان هم مسلمانانو درلودلو خو سره له دې چې اسيران کېږي به نه مسلمانان ددوئ نه دمصلحت پربنسټ دامير په حکم وسلې ټولولی شي.

داخو هغه صورت و چې د اسلام قبلولو او تسلمېدو نه وړاندې په دوئ کې د خپل ځان نه د دفاع کولو ځواک شتون درلود

او که چېرې دوئ چې اسلام یې اعلان کړی دی پکې د خپلو ځانونو نه د دفاع توان نه و بلکې د جنګ ډګر کې یا په خپلو کلاګانو او ښارونو کې د مجاهدینو د محاصرې لاندې راغلي وو نو پدې صورت کې د تسلمېدو نه پس دوئ آزاد نه ګڼل کیږي بلکې دوئ جنګي قیدیان دي البته اسلام قبلولو یې وینه محفوظ کړې ده، یانې وژل یې لکه د نورو مسلمانانو ناروا دي، دادواړه صورتونه په شرح سیر الکبیر کې په تفصیل سره ذکر شوي دي.

جنګي اسیر مسلمان شوی وي او که په خپل کفر پاتی وي په اړه یې چې کومه پرېکړه کولی شي هغه به وروسته ذکر کړو او هلته به وو ایو چې په اړه یې د پرېکړې اختیار د مسلمانانو د امیر سره دی، هغه به ګوري چې په احسان کولو، فدیې اخستلو، مریتوب یا وژلو هریو کې چې د مسلمانانو اجتماعي خیر وي هغه پرېکړه به صادروي خو وړاندې له دېنه چې په هکله یې پرېکړه وشي دا پوښتنه مطرح کېږي چې د اسیرانو سره د سلوک په هکله اسلامي لارښوونې څه دي؟

نو غواړو چې لومړی د اسیر سره د سلوک په مسئلې لږه رڼا واچوو او بیا یې حکمونه ذکر کړو.

الله تعالی د سورة دهر په ۸م آیة کې مسکین یتیم او اسیر ته طعام ورکونکي ستایلي دي، او فرمایي: (وَيُطْعِمُونَ الطَّعَامَ عَلَى حُبِّهِ مِسْكِينًا وَيَتِيمًا وَأَسِيرًا) ژباړه: دوئ ورکوي طعام سره د مینې د دوی د طعام سره مسکین یتیم او اسیر ته.

ابن عباس رضی الله تعالی عنهما فرمايي چې د اسير نه مراد هغه مشرک دی چې د مسلمانانو په لاس کې پرېوتی وي، امام قرطبي رحمه الله په خپل تفسير کې د دې آيت لاندې فرمايي چې دا آيت د هغه کسانو په باره کې نازل شوی دی کومو کسانو چې د بدر د اسيرانو کفالت په خپلو غاړو اخيستی و او دوئ ۷ مهاجرين وو، ابوبکر، عمر، علي، زبير، عبدالرحمن بن عوف، سعد او ابوعبيده رضی الله عنهم اجمعين.

ابن کثير رحمه الله د ابن عباس رضی االله عنهما په حواله د دې لاندې ليکي چې د بدر ټول اسيران مشرکان و خو رسول الله صلی الله عليه وسلم خپلو اصحابو ته حکم کړی و چې د دې اسيرانو عزت دې کوي نو ځکه به بيا دوئ لومړی ډوډی اسيرانو ته ورکوله او بيا به يې پخپله خوړله.

د ابن هشام سيرت کې راغلي چې ابن اسحاق د نبيه بن وهب نه داسې رانقلوي: د بدر اسيران رسول الله صلی الله عليه وسلم په خپلو اصحابو کې ووېشل او ويې فرمايل چې درته د اسيرانو سره د ښه سلوک کولو وصيت کوم، نبيه بن وهب فرمايي چې د مصعب بن عمير سکه ورور ابو عزيز بن عمير هم د بدر په اسيرانو کې و، ابوعزيز وايي چې زما ورور مصعب بن عمير زما تر څنګ تېر شو او زه د يو انصاري سره اسيروم زما ورور انصاري ته وويل چې کلک يې ونيسه ! مور يې ښه مالداره ده شايد په بدل کې يې فديه درکړي ( سيرت ابن هشام ليکي چې ابوعزيز مصعب بن عمير ته وويل وروره ! زما په باره کې دې همدا د خير نصيحت دی ؟ ! مصعب بن عمير ورته وويل چې ته مې ورور نه يې بلکې دا انصاري مې ورور دی ! د ابو عزيز مور وپوښتل چې په قريشي اسيرانو کې د يو اسير په بدل کې تر ټولو زيات څومره فديه ورکړل شوې ده ؟ ورته وويل شو چې ۴ زره درهم، هغې د مکې نه ۴ زره درهم راواستول او ابو عزيزيې پرې آزاد کړ ) ابوعزيز وايي زه چې د کومو انصارو سره اسيروم

اودبدر نه يې مدينې ته راوستی وم دهغوئ داحال و چې کله به د سبا او بيگا دډوډۍ خوړلو وخت شونو درسول الله ﷺ دهغه وصيت له امله چې خپلو صحابه وو ته يې دبنديانو په هکله کړی و دوئ به پخپله کجورې خوړلې اوماته به يې ډوډۍ راکوله ( هغه مهال چې دعربو په خاوره کې دغلو دانو ډېر کمښت و نو ډوډۍ پر کجورو ډېر فوقيت درلود )، دوئ به که دډوډۍ کومه کوچنۍ ټوټه هم وموندله ماته به يې راکړه مابه له شرمه دوئ ته بېرته ورکوله خو دوئ به ورته لاس هم نه وروړ.

دذکر شوو او ورته نورو نصوصو نه داجوتېږي چې داسارت نه پس به مسلمانان دخپلو کافرو بنديانو سره ددښمنۍ سلوک نه کوي بلکې داسې به يې گڼي لکه خپل يو محترم ميلمه، اوهمدا يوله هغه مثبتو دريځونو څخه دی چې اسلام يې دبشرد حقوقو اوانساني کرامت په وړاندې لري اوحقيقت دادی چې داسلام اومسلمانانو لپاره داډېرد ستر افتخار خبره ده اوهرڅومره زيات چې پرې وویاړي کمه به وي.

دبنديانو سره دغوره سلوک کوم تعليم چې اسلام ورکړی دی اوبيا مسلمانانو عملي کړی دی يوملت اومذهب يې هم په وړاندې کولو نشي توانېدلی، لرې نه ځو، فرعونيان، نمروديان اواصحاب الاخدود نه رايادوو اونه دهغه کفاروا و مشرکينو سلوک رامخې ته کوو کوم چې درسول الله صلی الله عليه وسلم اصحاب دنيولو نه پس گرمو تېلو ته وراچولي چې له امله يې په څو ثانيوکې غوښې اوهډوکي ديوبل نه جلا شوي دي، چنگيز خان، هلاکو خان اوگوډ تيمور به چې مسلمان اونامسلمان مخالفين دنيولو نه پس وژل او دهغوئ دپرېکړو سرونو نه به يې دغرونو په څېر ستر ستر امبارونه جوړول دابه هم دتاريخ زړې خبرې وگڼو، په صليبي جنگونوکې چې صليبيانو دنيول شوو مسلمانانو سره دوحشت نه ډک کوم سلوکونه کړی دی هغه به هم له ياده وباسو، په

هسپانيه کې چې د اسلامي واکمنۍ دله منځه تللو نه پس هسپانوي عيسويانو مسلمانان قيد کړل او په سوونو زره يې په ډېرې بې دردۍ سره ووژل هغه به هم هېر وګڼو، فرانسوي او ايټالوي امپراتورانو چې دالمغرب نه تر ليبيا په خپلو مفتوحو سيمو کې دمغلوبو ولسونو سره کوم ظلمونه کړي دي په هغې به هم ستر ګې پټې کړو او په نړيوالو ۲ سترو جنګونو کې چې دواړو اړخونو دنيول شوو زندانيانو او د قبضه کړو خاورو دکمزورو ولسونو سره دوحشت، دهشت او ظلم نه ډک کوم سلوکونه کړي هغه به هم دخپل پيدا کېدو نه وړاندې اودخپل يادنه لرې پېښې وګڼو، که دا هرڅه هېر کړو خو کوم څه چې زموږ ترمخه او زمونږ په يادو تېرشول او تېرېږي که يو اځې همدا رامخې ته کړو نو همدا د اسلام او مسلمانانو دعدل او بشر دوستۍ او دکفارو دظلم وحشت او انسان دښمنۍ د اثبات لپاره کافي دی او ورته ستر دليل دی.

دقفقاز او منځنۍ اسيا په اسلامي جمهوريتونو او افغانستان کې روسانو او دهغوئ ګوډاګي کمونستانو دمسلمانو بنديانو سره په برقي ډنډو دوهلو نه ترنوکانو وېستلو پورې کوم ظلم و چې ويې نه کړ؟ او مهم داچې دا ټول ظلمونه په دولتي سطحه او ددولت دجنګي پاليسۍ له مخې کېدل خو دهمدې روسانو سره دمجاهدينو سلوک بيا دومره نيک و چې له امله يې ډېر ژوندي نيول شوي روسان مسلمان شوي وو او بيا به دروسي فوځيانو پرضد جنګېدل. ورپسې مو امريکايان او دهغوی نورغربي متحدين هم وليدل چې دمسلمانو اسيرانو سره يې په عراق او افغانستان کې څومره دظلم او وحشت نه ډک اونا انساني سلوکونه وکړل خو مسلمانو مجاهدينو چې ددوئ نه څوک ژوندي نيولي دي دهيڅ يو سره يې بد سلوک ندي شوي او ددې لپاره يو مثال وړاندې کول کافي بولو، هغه داچې طالبانو هېواد ته په غلا راداخله شوې ايوان ريډلي

نومي برتانوی جاسوسه په داسې حال کې ونيوله چې دافغاني مېرمنو لباس اوچادري يې پرتن وه او داسې آلات ترې هم ترلاسه شوي وو چې په جاسوسی کې ترې کار اخيستل کېږي، دطالبانو سره دولس ديارلس ورځې قيد وه اوچې کله پرېښودل شوه نو دطالبانو دښه سلوک نه دومره متاثره شوې وه چې برتانيې ته دستنېدو نه سمدستي پس يې داسلام مطالعه پيل کړه بيا يې دا آسماني، حق اوفطري دين قبول کړ، دايوان ريډلي نه مريم ريډلي شوه او اوس يې يوائينی کار داسلام اومسلمانانو نه ددفاع کولو هڅې دي اوخپل ټول وخت يې همدې کارته بښلی دی.

داخو يوه برتانوی وه چې دمسلمانانو سره قيد شوې وه خو ددې پېښې نه کابو دوه نيم کاله پس چې دعافيه صديقي په نوم يوه مسلمانه مېرمن دالقاعدې سره دتړاو په تور امريکايانو سره له خپلو ۳ کوچنيانو باګرام ته يوړه نو ترننه دامريکايانو سره په زندان کې ده اودومره ناانساني سلوک ورسره په تېرو څوکلونو کې شوي دي چې خوله يې په ويلو اوقلم يې په ليکلو شرمېږي.

دشلتړنو نومي موسسې ۸ تنه کارکوونکی چې داخلاقي فسادخپرولواوارتداد ته دناپوهو تنانو رادعوت کولو په جرم طالبانو نيولي وو او ورپسې ډېر نېږدې جنګي حالت رامنځته شو دکوم غرب سره چې ددې مجرمينو تړاو وو دهماغه غرب صليبي اتحاد پرطالبانو درانه بمونه راغورځول چې له امله به يې هره ورځ ډېرطالبان په شهادت رسېدل طالبانو دانتقام اخستلو اوخپل ټټريخولو په موخه هغوئ ټول بايد وژلي وای خو آفرين دطالبانو په عدل اوعالی اخلاقو چې وژل ياوهل ټکول خو پرېږده دې بنديانو ته يې يوه ترخه خبره هم نه وه کړې اوچې لا دمسلمانو قاضيانوله لورې دهغوئ شرعي جزا نه وه تعين شوې

نو دتلوپر مهال هم ورته طالبانو څه ونه ويل ګيني په سرونو يې ويشتل ډېر اسان کارو.

څوک دې دانه وايې چې طالبانو دخپلو زندانيانو سره بد سلوک ځکه نه کاوه چې ددوئ سره لابد سلوک نه وشوی دادې څوک ځکه نه وايې چې په ګونتانامو او دهېواد په نوروزندانونو کې چې دطالبانو سره هرډول ناانساني سلوکونه شوي وودهغې نه پس چې طالبانو دجنوبي کوريا ۲۳ تنه مسيحي مبلغين، ورپسې امريکايي عسکر اوبيادري ځله فرانسويان ونيول نو ټولې نړۍ وليدل چې ددې بنديانو سره هم طالبانو دميلمنو په څېر سلوک کړی او خپلو شرعي اصولوته ژمن پاتې شويدي.

لنډه داچې زموږ دښمنان که هرڅه کوي، کوي به يې خو موږ دالهي حکمونو تابع يو، دااسيرانو په هکله چې راته خپل شريعت څه لارښوونې کړي دي هغې ته مسؤل يو اوله نيکه مرغه چې ترډېره حده ورته عملاً ژمن هم يو.

خو يوه يادونه ډېره ضروري بولو هغه داده چې داسې هم نده چې په يوحالت کې هم ګينې اسلام خپلو متبعينو ته د اسير سره دسختۍ کولو اجازه نه ورکوي، بلکې که اړتيا پېښه شي په حدودو کې دننه دجنګي اسيرانو سره سختي کول جواز لري.

دبدر دغزا اړوند يو حديث په صحيح مسلم کې راغلی دی: دهغه حديث مفهوم دادی چې دجنګ پيل کېدو نه وړاندې څو صحابه دقريشو دحال معلومولو لپاره وتلي وو چې په هغه ۲ هلکانو وربرابرشول چې دقريشو لښکرته يې اوبه وړلې، دا دواړه يې ونيول اورسول الله صلی الله عليه وسلم ته يې راوستل پدې وخت کې رسول الله لی الله عليه وسلم په لمانځه ولاړو، نو نيونکو صحابه وو ددواړوهلکانونه دقريشو دلښکر

په باره کې پوښتنې پيل کړې خو چې دواړو هلکانو د قريشو د لښکر په باره کې هغسې څه نه ويل چې صحابه وو ترې غوښتل نو صحابه و ګومان وکړ چې دوئ راته دروغ وايي او دخپل لښکر په اړه موږ ته سم معلومات نه راکوي نو په وهلو يې پرې شروع وکړه چې لږ څه يې ووهل هغوئ دواړو داسې څه وويل چې صحابه يې خوښ کړل نو يې ددوئ وهل بس کړل کله چې رسول الله صلی الله عليه وسلم سلام وګرځاوه نو ويې فرمايل چې کله دوئ رښتيا ويل نو تاسو ووهل او چې کله يې دروغ وويل نو پرې موښودل، يقيناً ددوئ تړاو دقريشو دلښکر سره دی، بيا دواړه هلکانو ته رامخامخ شو او دقريشو دلښکر په باره کې يې ترې وپوښتل هغوئ وويل چې لښکر دلته نږدې دی.

اصل خبره داوه چې صحابه و ګومان کاوه چې دوئ دواړه دابوسفيان دهغې قافلې کسان دي دکومې پسې چې مسلمانان راوتلي وو نو دوئ چې ددې قافلې سره دتړاو نه انکار وکړ او ويې ويل چې زموږ تړاو دقريشو دلښکر سره دی صحابه وو ته دا خبره خوښه نه شوه نو ويې وهل چې دوهلونه پس هغوئ د مجبوريت په اساس دابوسفيان دتجارتي قافلې سره دتړاو اعتراف وکړچې دارښتيانه وه.

دحديث دظاهر نه خودا سير دنه وهلو خبره معلوميږي خو علماء دهمدې حديث نه دا ړتيا په صورت کې دوهلو دجواز استدلال کوي اوفرمايي چې دلته خبره دخاصو اسيرانو وه اودرښتيا ويلو په صورت کې دصحابه و له لوري په وهلو رسول الله ﷺ تعجب ښکاره کړ، په هرحالت کې دا سير دنه وهلو نه دلته کومه عمومي منع نشته که عمومي منع مطلوب وای رسول الله صلی الله عليه وسلم به په ښه صراحت عمومي منع فرمايلی وای ځکه خو امام نووي ددې حديث لاندې فرمايي چې:

وفيه جواز ضرب الكافر الذي لاعهد له وان كان اسيراً ''ژباړه:ددې حديث نه دغيرمعاهد كافر دوهلوجواز ثابتيږي اګرچې اسير وي.

څرګنده ده چې دامام نووي رحمه الله مقصد دادی چې کله يې وهلوته اړتيا وي اوپکې فايده وي.

امام ابوداؤد رحمه الله ددې حديث لپاره ترجمة الباب پدې عنوان راوړی دی چې ''باب في الاسير يُنال منه، ويُضرب، ويُقرّر او امام خطابي ترې لاندې ليکي چې: وفيه جواز ضرب الاسير الكافر اذاكان في ضربه طائل.

نواسلام دژوند تېرولو اونظام چلولو په هکله کامل اوبې ساری لارښوونې لري داسې نده چې دنيول شوي دښمن سره دښه سلوک تاکيد خوګينې کوي او ورنه درازونو معلومول اوددښمن دسترو خطرونو نه دځان ژغورلو د هرډول اقدام نه منع کوي، داسې نده ځينې په اصطلاح جديد پال ( هغوی چې په هره مسئله کې دداسې ځوابونو ورکولو کوښښ کوي چې غرب پرې خوشاليږي ) وايي چې اسلام په يوحالت کې هم دنامسلمان جنګي اسيرسره دډېرې لږې سختۍ اجازه هم نه ورکوي.

نولنډه داچې په عاموحالاتوکې اسلام خپلو متبعينو ته دکافر اسير سره دښه سلوک امرکوي خو داړتيا په صورت کې دمناسبې سختۍ اجازه هم ورکوي خودا اړتيا اوسختۍ تعين دهرچا کار نه دی.

## د مسلمانانو د اسيرانو په اړه د نورو مسلمانانو مسئوليت

اوس راځوددې ليکنې دوهمې برخې ته نوترکومه چې ددښمن سره دمسلمان داسيراکېدلو خبره ده نوپه وړاندې پرې يوڅه رڼا واچول شوه او دا راته جوته شوه چې مسلمان دداسې حالاتوسره هم مخامخ کېدای

شي چې شریعت یې ځان وژني ته نه اړباسي اونه ورته ددې اجازه ورکوي بلکې ددښمن په لاس کې اسیرکېدل ورته شرعا جوازلري نو اوس پوښتنه داده چې ددښمن په لاس کې دداسې اسیرشوي مسلمان په اړه د نورو مسلمانانو مسؤلیت څه دی؟

امام بخاري رحمه الله تعالی د(باب فکاک الاسر )ترعنوان لاندې دا راتلونکی حدیث راوړیدي:عن ابي موسی الاشعری رضي الله عنه قال قال رسول الله فُکُّوالعاني، یعني الاسیر واطعموا الجائع، وعودوا المریض.

ژباړه:حضرت ابوموسی اشعري رضی الله تعالی عنه فرمايي چې رسول الله صلي الله عله وسلم وفرمایل چې (ددښمن له قیدنه) اسیران ازادوئ !وږي خلک مړوئ !اودمریضانو پوښتنه کوئ !

دبخاري په مشهوری شرح فتح الباري کې علامه ابن حجر رحمه الله د باب فکاک الاسیرنه پس لیکي چې بمال او بغیره بیایې دابن بطال داقول ذکرکړیدي چې ,,فکاک الاسیرواجب علی الکفایة وبه قال الجمهور، ،

یانې د زور، پیسو اویاتبادلې له لارې داسیر را خلاصول دټولو مسلمانانوفریضه ده نوکه څینو مسلمانانو داکاروکړ یانی مسلمان اسیران یې ددښمن دمنګلونه راخلاص کړل نو دټولوشرعی مسئولیت اداشواوکه هیچا هم ددې لپاره قدم پورته نکړنو بیاپدې شرعي مسئولیت کې دکوتاهۍ او غفلت له امله دنړۍ ټول مسلمانان ګناهګاران دي اګرکه یو مسلمان هم اسیرپاتی وي.

ترکومه چې په زوریاپیسودکفارودقیدنه داسیرانو د راخلاصولو دجوازخبره ده نوپدې خودامت اجماع ده یو مجتهد یا امام یې هم خلاف نه دی اونه یې په مخالفت کې دکوم فقیه قول رانقل شویدی، ټول فقهاءفرمايي چې اسلامي لښکروکه په زوردښمن دمنګلونه خپل

اسيران راخلاصولای شول نو ډيره غوره ده اوکه په زوريې نه شو راخلاصولای نو دروپو ياکوم بل ډول مال په بدل کې به قيدي راخلاصولای شي، که بيت المال شتون درلودلواو روپۍ پکې وې نو دبيت المال پيسې به ددې هدف لپاره لګولی شي اوکه بيت المال نه وي يا پکې پيسې نه وې نو په عامو مسلمانانو ترهغې پدې لارکې دخپلومالونولګول واجب دي چې يايو مسلمان اسيرهم ددښمن په اسارت کې پاتی نه شي اويادمسلمانانوټول مالونه پدې لار ولګول شي او ورسره يوه روپۍ هم پرلاس پاتی نه شي.

کومه خبره چې مو وکړه همدا زموږ ددين اتفاقي اصل او اجماعي مسئله ده چې نامتوعالم او مشهورمفسر علامه قرطبي رحمه الله تعالی په صراحت فرمايلې چې (قال علماؤنا:فداء الاساری واجب وان لم يبق درهم واحد ، وردت الاثارعن النبی انه فک الاساری، وامربفکهم وجری بذلک عمل المسلمين وانعقد به الاجماع، ويجب فک الاساری من بيت المال فان لم يکن فهو فرض علی کافة المسلمين ومن قام به منهم اسقط الفرض عن الباقين.احکام القرآن ۲۳\۲

ژباړه:زموږعلماءو فرمايلي دي چې داسيرانو راخلاصول پر مسلمانانوواجب دي اګر چې دمسلمانانوټول مالونه پدې لارکې مصرف شي او ورسره يوه روپۍ هم پاتی نه شي، دنبی عليه السلام نه پدې باره کې ډېراحاديث راغلي دي چې هغه پخپله هم اسيران راخلاص کړيدي او دراخلاصولوحکم يې هم خپل امت ته کړيدي، دمسلمانانوعمل هم همدا سې راروان دی اوپه همدې د مسلمانانو اجماع هم ده، داسيرانو دراخلاصولولپاره به د بيت المال پيسې لګول کېږي اوکه بيت المال نه وي(ياپکې پيسې نه وي )نوبيايې راخلاصول دټولومسلمانانوفريضه ده

او په مسلمانانو کې چې ځینو دا مسؤلیت اداکړ(اویو بندي هم د کفارو په قیدکې پاتی نه شي ) نود ټولو غاړه خلاصه شوه(ګینی ټول ګناهګار دي).

داخو دزور یا مال له لارې د کفارو د قید نه د مسلمانو اسیرانو دراخلاصولو خبره وه او دمخه مو وویل چې پدې باندې دټول امت اجماع ده دیو امام او مجتهد نه پدې اړه خلاف نه دی رانقل شوی ؛ دمسلمانو اسیرانو دراخلاصولو یوه بله لار د تبادلې لار ده ؛ دا سیرانو سره دا سیرانو دتبادلې په هکله دامام ابوحنیفه رحمه الله تعالی نه دنه جواز یو قول رانقل شویدی اودلیل کې یې د سورة توبې دا آیت راوړل شویدی چې(فاقتلوا المشرکین حیث وجدتموهم )

هغه فرمایي چې دمسلمانانو سره اسیران شوی تنان حربي مقاتلین دي، الله تعالی خوددوئ د وژلو حکم کړیدی هر چیری چې وموندل شي اوپه تبادلې کې خو ددوئ ژوندي پریښودل دي چې پکې دالله تعالی دحکم نه مخالفت دی نو ځکه جوازنه لري.

خودا دامام ابوحنیفه رحمه الله تعالی ظاهرالروایة قول ندی، د امام ابویوسف اوامام محمد رحمهماالله په خیرامام ابوحنیفه رحمه الله تعالی هم دظاهرالروایة قول له مخې دجواز قائل دی لکه چې په السیر الکبیر کې راغلي دي: ولاباس بان یفادی اسراء المسلمین باسراء المشرکین فی ایدی المسلمین من الرجال والنساء وهذا قول ابي یوسف ومحمد وهو اظهرالروایتین عن ابي حنیفة.

ژباړه:پدې کې څه باک نشته یانې جوازلري داچې دمسلمانو اسیرانو سره دکافرو اسیرانو تبادله وشي،سړي وي او که ښځې همدا قول

دامام ابو يوسف او امام محمد دی او همدا د امام ابوحنيفه په دوه روايتونو کې اظهر روايت.

اوهرچې د سورة توبې د ذکرشوي آيت خبره ده نو ددې په هکله خو مفسرينو فرمايلي دي چې هذه الآية فی حق الکفار قبل القائهم فی الاسر، بدليل جواز استرقاق الاساری وعدم قتلهم حتی عند ابی حنيفة نفسه،

يانې پدې آية کې چې دمشرکانو دوژلو حکم شويدی نو مراد ترينه هغه کفار اومشرکان دي چې لادمسلمانانو سره نه وي اسيران شوي ځکه چې که چېرته دا سيرانو شويو کفارو او مشرکانو په باره کې هم يواځې دوژلو حکم وای نو بيا خو پکار ده چې غلام ګرځول يې ناروا وای حال داچې پخپله امام ابوحنيفه رحمه الله يې هم دجواز قائل دی نو معلومه شوه چې دا آية دنا اسيرشويو حربي کفارو اومشرکانو په باره کې دی.

اوس راځو دتبادلې د جواز دلايلو ته نويو دليل خويې هغه حديث دی چې وړاندې موتری يادونه وکړه چې درسول الله صلی الله عليه وسلم اصحابو دبني عقيل يوتن نيولی و او رسول الله يې په تبادلې کې خپل هغه ۲ اصحاب راخلاص کړي وو کوم چې ثقيف قبيلې نيولې وورسول الله ځکه دعقيل قبيلې دنيول شوی تن په ذريعه خپل ۲ ملګری راخلاص کړل چې ثقيف اوعقيل په خپلو کې سره اتحاديان وو

همدارنګه مسلم شريف او ابوداؤد دواړو د(فکاک اسری المسلمين من ايدی العدو ) دباب لاندې دسلمة بن الاکوع يو اوږد حديث راوړيدی په هغی کې سلمه بن الاکوع فرمايي چې د بنوفزاره پرضد دجنګ لپاره رسول الله صلی الله عليه وسلم زموږ يولښکر واستولو اوابوبکريې زموږمشرکړ، دحديث په وروستۍ برخه کې سلمه رضی الله فرمايي چې ماپه يواځې ځان ددښمن يوه ډله چې پکې مېرمنې اوکوچنيان هم وو

ونيوله او ابوبکر ته مې راوستله په غنيمت کې مې چې کومه برخه رسيدله دهغې نه علاوه راته ابوبکر ددې ډلې يوه ترټولو ښکلې انجلۍ دانعام په توګه راکړه او موږمدينې ته راستانه شولو ، مالا دانجلۍ نه خپل ضرورت نه وپوره کړی چې رسول الله صلی الله عليه وسلم راسره په مدينې کې مخامخ شو اوراته يې وويل چې دا انجلۍ ماته هبه کړه ! ماورته وويل يارسول الله ! دا انجلۍ مې ډېره خوښه شوه او لامې ورنه خپل ضرورت ندی پوره کړی، رسول الله راسره بيامخامخ شو او رانه يې همدا غوښتنه بياوکړه، په الله مې دې قسم وي چې ماورنه لا خپل ضرورت نه وپوره کړی، (نور سول الله ته مې ورکړه )رسول الله صلی الله عليه وسلم هغه مکې ته واستوله او هغه مسلمانان يې پرې را آزاد کړل چې په مکې کې اسيران شوي وو.

امام نووي ددی حديث لاندې ليکي چې ,,فيه جواز المفاداة وجوازفداء الرجال بالنساء الکافرات، ددې حديث نه دمسلمانو اسيرانو په مقابل کې دمفاداة (تبادلې ) کولو اودمسلمانو سړو په مقابل کې دکافرو ښځو د ورکولو جواز ثابتېږي

هو ! دلته په يوې کافرې قيدۍ رسول الله صلی الله عليه وسلم ډېر مسلمان قيديان راخلاص کړل اوپه وړاندې حديث کې موهم ولوستل چې په يو قيدي رسول الله ﷺ دوه مسلمانان راخلاص کړي وو.

علماء فرمايې داضروري نده چې خامخا به دلږو کفارو په مقابل کې ډېرمسلمانان وي بلکې ددې عکس هم جواز لري او حضرت عمربن عبدالعزيزرحمه الله تعالی دخپل خلافت په زمانه کې همدا سې کړي و.

حضرت عبدالرحمن بن ابی عمرة فرمايې,, چې زه کله عمربن عبدالعزيزپه قسطنطنيې کې دروميانو دقيد نه دمسلمانو اسيرانو د

راخلاصولو لپاره استولم نو ما ورته وويل اميرالمؤمنين ! كه هغوئ (روميان) ديو په مقابل كې په يونه راضي كېدل بلكې ديو په مقابل كې يې دخپلو زياتو قيديانو غوښتنه كوله نوڅه وكړم؟ هغه وفرمايل ورزيات يې كړه ! ماورته وويل كه په ۲روميانويې هم يومسلمان نه راكولونو؟ هغه وفرمايل ۳وركړه ماعرض وكړ كه ۴يې غوښتل ؟ هغه وفرمايل چې ديومسلمان په مقابل كې چې په څومره تنانوراضي شول وريې كړه، زمادې په الله قسم وي چې ماته يومسلمان دټولو هغو مشركينونه ډيرزيات ارزښت لري كوم چې زماسره قيددي، كه په دوئ(دمسلمانانوسره په قيدشويو روميانو) ټولو دې يومسلمان هم راخلاص كړنو دابه دې بريالېتوب وي ځكه چې ته ددوئ په بدل كې داسلام اخستونكې يې،

عبدالرحمن بن ابي عمرة فرمايې چې (زه ولاړم او دروم پاچا سره مې خبرې وشوې نو) دروم پاچا د۲روميانو په بدل كې ديو مسلمان په راخوشې كولو راضي شو.

دعبدالرحمن بن ابي عمره نه ځنې راويانو داهم رانقل كړيدي چې عبدالرحمن بن ابي عمره دعمربن عبدالعزيز نه د هغه ذميانو په هكله وپوښتل كوم چې دروميانوسره قيد شوي وو(ياني دروميانو دمنګلونه دهغوئ دراخلاصولولپاره هم څه وكړم كه نه؟)حضرت عمر بن عبدالعزيز ورته وفرمايل چې د مسلمانانو دراخلاصولو لپاره چې څومره فديه وركوې د ذميانو هم هماغومره فديه وركړه او راخلاص يې كړه !.

علماء فرمايې چې د ذميانوسره دعقد همدا تقاضا ده او د ذميانو په باره كې بايد داسلامي حكومت دريځ تل همداسې وي علماء دحضرت علي رضي الله عنه دا قول رانقلوي چې

:انمابذلوا الجزية لتكون دمائهم كدمائنا واموالهم كاموالنا.

ژباړه :ذميانو جزيه ددې لپاره مونږته راکړی چې وينې يې زمونږ دوينواومالونه يې زمونږدمالونو په څېر(محفوظ )وي مسلمانانو تل په خپل همدې اصل عمل کړيدی او اسلامي حکومتونه په ډېرو سختو حالاتواوشرايطو کې هم دمسلمانانونه زيات د خپلی واکمنۍ لاندې دذميانو دځان مال او عزت ساتنې ته ژمن پاتې شويدي چې پخپله نامسلمان هم پرې اعتراف کوي، ځوک به دمسلمانانو په ټول۱۴سوه کلن تاريخ کې کوم کوچنی داسې مثال هم وړاندی نکړای شي چې پکې دخيرالقرون دزمانې نه ډير راوروسته کوم اسلامي حکومت دذميانوسره امتيازي سلوک ياظلم کړی وي، ياېې ددوئ حقوق ترپښولاندی کړی وي چې همدا د مسلمانانو دتاريخ يوډېر زرين باب دی.

لنډه دا چې ددښمن سره دزنداني شويومسلمانو اسيرانو په اړه حاکمان او عام مسلمانان ډېرستر مسئوليت لري خو متأسفانه چې ددې ستر مسئوليت احساس اوس په حاکمانو اوعامو مسلمانانو کې دنشت برابر دی، بس يواځې داسلامي نړۍ مجاهدين دي چې نه يواځې دا چې خپل دا مسئوليت يې پېژندلی دی او ادا کوي يې بلکې حقيقت دادی چې دخپل شرعي مسئوليت نه هم ځوقدمونه وړاندې تللي دي او دزندانونو نه دمسلمانانو دآزادولو لپاره دتصورنه وتې قرباني ورکوي داسې قرباني چې نړۍ يې هکه پکه حيرانه کړيده.

دچادآزادۍ لپاره به ځوک خپل ځان قربان کړي؟ نه به پلار دځوی اونه به ځوی دپلاردآزادۍ لپاره ځان قربان کړي اونه په تاريخ کې چېرته داسې شويدي خو دامجاهدين دي چې په زندانونو فدايې بريدونه کوي، خپل سرونه قربانوي اوخپل مسلمان ورونه راخلاصوي دکندهارزندان

دري ځلی مجاهدينو مات کړاو په زرونو مسلمان مجاهدين يې ترې راآزاد کړل خو هرځل چې کوم مجاهدين ددې زندان دماتولو لپاره تللي دي هغوئ ټکابوټولو خپل سرونه قربان کړيدي، په پل چرخي زندان کې دننه هم دنورو دآزدۍ لپاره لسګونو مجاهدينو خپل سرونه قربان کړل او په باګرام کې خو هر مجاهد داسې کارونو ته سخت خوشالېږي چې له امله يې هغه په مياشتو مياشتو جزايې کېږي خوچې په نورو داسانتيا راشي.

او همدا حالت دنړۍ دټولو مجاهدينو دی، داسرائيلو په زندانونو کې دپرتو مسلمانانو دآزادۍ لپاره دغزې ټولو مجاهدو مسلمانانو اوپه ځانګړې توګه خماس ډېرې حيرانونکې قربانۍ ورکړې، ګيلاد شاليت نومي يو اسرئيلي عسکر حماس ژوندی ونيو، اسرائيلو دخپل عسکر دراخلاصولو لپاره دغزې مجاهد مسلمانان دډېرو فشارونو لاندې راوستل، غزه يې په کلي ډول محاصره کړه دمسلسلو بمباريو ترڅنګ يې پرې په۲۰۰۸کې خونړی يرغل وکړ چې ۲۴ورځې يې دوام وکړاوپکې په زرونو مسلمانان ټپيان او شهدان شول خوداسرائيلو فشار يې ونه منلو اونه دعسکرورکولو ته چمتو شول تردې چې داسرائيلو دزندانونونه يې پرې شاوخوا ۱۳سوه مسلمانان راأزاد کړل.

محترمو لوستوالو ته به معلومه وي چې داسرائيلو په زندانونو کې نېږدې ۱۱زره فلسطيني مسلمانان قيد دي چې د ځوانانو تر څنګ پکې کوچنيان، مېرمنې اوبوډاګان هم شامل دي ؛ که فکروشي نو ديهودانو سره دمسلمانو مېرمنو او کوچنيانو اسير ان کېدل ډېره دغم نه ډکه خبره او داسلامي نړۍ لپاره خورالويه ننګونه ده خوموږوينوچې پر اسلامي هېوادونو دمسلطو شويو حاکمانو ترڅنګ دنړۍ په عامو مسلمانانو کې هم ددې زندانيانو په اړه فکرمندي نه ترسترګو کېږي، نه چاددې زندانيانو پانه اړولې ده، نه ددوئ لپاره په نړۍ کې چاآواز پورته کړيدی،

نه یې دراخلاصولو لپاره هڅې چاخپل مسئولیت ګڼلی او نه یې په دې لارکې کوم داسې قدم پورته کړی چې هغه د مسئولیت دمعمولي احساس ددلیل په توګه وړاندی کړای شي

او خبره یوازې دفلسطین دزندانیانو نه ده چې ګینې یوازې دهمدوئ په اړه غفلت کېږي بلکې په عراق، افغانستان اونورې ټولې اسلامي نړۍ کې همدا حال دی، که په حقیقي نظر وکتل شي نوربښتیا داده چې عام مسلمانان داهیڅ اجتماعي مسئله او مسئولیت نه ګڼي، دعامو مسلمانانو په فکر داد هر چا شخصي مسئله ده، کوم مسلمان چې دکفارو یا دهغوئ دګوډاګیانو سره زنداني کېږي دهغه دکوچنیانو د کفالت، په رندان کې دخرڅ او دراخلاصولو لپاره دمصرف ټول غمونه به یې خپله کورنۍ خوري، که کورنۍ یې دا ټول مصرفونه په اوږو واخستای شي نود زنداني درخلاصېدو امېد به یې وي ګینې په زندان کې به پروت وي اودوسیه به یې ورځ تر بلې سختېږي.

دهېواد په مختلفوزندانونو کې په زرونو سوچه مسلمانان دهمداسې حالت سره مخامخ دي چې دمثال په توګه یې یوه ژوندۍ ببلګه دلته راوړل مناسب بولم، دتګاب عبدالرحمن، دخاص کنړفریدون دننګرهار دروداتو عبدالرحمن درې واړه ماپېژندل دوئ ډېر کلک مجاهدین وواو اودهېواد داشغال په هماغه ړومبوورځو کې یې دڅو نورو ملګروسره یو ځای د اشغالګرو پر ضد جهاد پیل کړی ووچې کابو ترڅلورو کلونو پورې یې جاري وساتلو او په ډېرو سختو شریطو او حالاتو کې یې پر دښمن کامیاب ګوزارونه وکړل، درې واړه په جلال آبادکې دامریکایانو اوداخلي استخباراتوپه ګډه و عملیاتو کې ژوندي ونیول شول او څه کم یاڅه دپاسه درې کاله پس په پل چرخي زندان کې ددار په تختې وزړول شول، ځه چې دکوهي صافیوال عبدالرحمن فاتحې

ته ورغلم نو سپين ږيري پلار يې په ډېر حسرت راته وويل چې دا يو به هم نه واى اعدام شوى خو كه پيسې مو درلوداى ماورنه وپوښتل چې آيا په پيسو داعدام نه هم بچ كېداى شول؟ هغه وويل هو !قاضيانو چې كومې پيسې غوښتى وې كه موورکړى واى نو داعدام پرځاى به يې جزا اوږد قيد واى خو موږ ورنکړاى شوې ماورته وويل چې ډېرې زياتى پيسې يې غوښتې ؟ هغه وويل نه ډېرې زياتې نه وې خو زموږ دوس نه ببرون وې اوبل چارا سره كومک ونکړ ،

داسې ډېرى بېلګې شته خوچې زما تر مخه تېر شوي نو يوه بله بېلګه به يې هم وړندى كړم، دكتورايمن يوعرب تکړه جراح و او جلال آباد ته ددې لپاره راغلى وچې دامريكا په بمبار كې دټپيانو شويو مسلمانانو تداوي به كوي، دهمدې هدف لپاره ورته په پوهنتون شفاخانې كې يو وارډ وركړل شوى و ، د پوهنتون شفاخانې دمشرانو ډاكترانوويناداوه چې هغه داوارډ ډېرښه فعال كړى و اودبمبارپه ټولو شپو ورځوكې يې ډېرزيات ټپيان په ډېره ښه توګه تداوي كړي وو ، په ړومبي ځل چې هغه جلال آباد ته دوا راوړى وه دسپين غرهوټل مخې ته ولاړو اونه پوهېدلو چې چېرته يې يوسي ځه پرې تصادفاراپېښ شوم ما په هرځه پوه كړ اوچېرته يې چې تلل غوښتل هلته مې بوتلو اوچې مايې په ټولو ځايونو كې ترجماني هم وكړه نورا سره انډيوال شو چې تر آخره مې انډيوال و ، كله چې سقوط كېدلو نو ايمن هم دعربو مجاهدينو سره يوځاى تورى بوړى ته تللى و ، دكابو يوې مياشتى بمبار نه پس چې بهرني مجاهدين دتورى بوړى نه ووتل اوتوره بوړه دښمن قبضه كړه نو پكې يې ۱۷مجاهدين په ټپي حالت كې نيولي اوصحت عامه روغتون ته راوړي وو چې دكتورايمن هم پكې و ، ځه دهيڅ نه نه وم خبر، زما يودوست ډاكتر صيب راسره په لار كې مخامخ شو اوراته يې وويل

چې عرب مجاهدین یې شفاخانې ته راوړید ي که ورځې ؟ ځه ورسره روان شوم، ځه چې مجاهدینو ته ورغلم نود سور صلیب نمایندګان ددوئ نه راتاو وو ځه چې ښه ورننږدې شوم نو دکتور ایمن مې هم ددوئ په منځ کې ولید نوروټولو مجاهدینود سورصلیب دنمایندګانو نه مخونه اړولي وو، کله نا کله به یې ورته بد بد راوکتل یواځې ایمن چې روانه انګلېسي یې ویله ورسره په خبربوخت وهغه چې ما ته راوکتل نوپه مخ کې یې دخوښۍ نښې ښکاره شوې اویوبل سره په سترګوکې پوه شولو چې باید څه وکړو ؟ کوم ډاکټر چې ځه دي وارډ ته ورننویستی وم دهغه سره مې خبره شریکه کړه اوپدې اتفاق راغلوچې دتشناب دکړکۍ له لارې به یې دشپې له مخې راوباسو دجال پرې کولولپاره موتشناب ته قینچې ننویستله اوایمن مو په پروګرام پوه کړ دماخوستن لمانځه نه پس ورته ځه او راسره یو بل ملګری دصحت عامې جومات مخې ته پدې انتظارکې ولاړوو چې ایمن به زموږ دملګري ډاکټر صیب سره یوځای راووځي اوموږبه یې خوندي ځای ته بوځو خوله بده مرغه چې ډاکټر صیب یواځې راغلو او ویې ویل چې دمجاهدینو په سرپه پیرې باندې ګومارل شوي وسلوال پوه شول موږ مایوسه راستانه شولو، داهسې هم دډېر غمونو شپې ورځې وې خودپروګرام په ناکامۍ موږ ډېر زیات خفه شو، خیر شپه تېره شوه اوسبابیا په فکر کې شولو خو په هیڅ لار نه پوهېدلو ماسپښین راته ډاکټر صیب نوی زېری راوړ، ویې ویل چې دوسلوالو پیردارانومشر دحضرت علي سرګروپ دی خبره ورسره وشوه لس زره ډالر یې غوښتل خو درې زروته راښکته شو، موږ له دې وروسته ددې پیسو دپیداکولو لپاره هره خوا ډېرې هڅې وکړې، مګر ترهغه چې موږ پیسې پیدا کولې دغه عرب بندیان دډاکټر ایمن په شمول له شفاخانې څخه انتقال شول او زموږ هڅې یوازې دپیسو دنشتوالي له امله بې نتیجې پاته شوې.

مورچې په ټولوکې یوائې د دکتور ایمن پسې هڅې کولې نوله دې امله نه چې داراته په ټولو کې لوی او اهم سړی ښکاریدلو بلکې له دې امله چې دهغه سره زمونږ تعارف واو هغه پر مونږ اعتماد کاوه خوبیا وروسته مونږته معلومه شوه چې هغه ډیر دکارسړی و، دیو ډیرستر عالم ځوی او د مسلمانانو لوی خیرخواه انسان و.

هغه چې ډیر دکار سړی و، دډیر لرې ځای نه زمونږ دخدمت لپاره راغلی و، خپله دناز او اسانتیاو نه ډک ژوند یې پرېښی و او دلته یې زمونږ سره دتکلیفونو اومشقتونو نه ډکې شپې ورځې تېرولې نوځومره دافسوس خبره ده چې دډېرو کمو روپو په مقابل دصلیبیانو دمنګولونه آزادېدای شو خو مونږ آزادنکړای شو.

زمونږهر رښتینی مسلمان چې دمسلمانۍ، جهاد، اسلام او مسلمانانو نه دفاع په جرم دکفارو یادهغوئ دګوډاګیانو سره قید وي زمونږلپاره دټولې نړۍ نه زیات ارزښت لري اود راخلاصولو هڅې یې زمونږ اجتماعي مسؤلیت دی خدای دې وکړي چې مونږ ددې مسؤلیت په اړه دغفلت نه راووځو اومشران اوکشران ټول خپل دې سترمسؤلیت ته متوجې شي آمین

## د یوسف علیه السلام د زنداني کېدو کیسه

یوسف علیه السلام دحضرت یعقوب علیه السلام زوی اود حضرت ابراهیم علیه السلام له اولادې څخه وو، سره له دې چې دیعقوب علیه السلام ۱۱ زامن نور هم وو، خو یوسف علیه السلام دهغه دځانګړو شمائلو او اخلاقو له برکته ډیر پرې ګران وو، چې همدې خبرې دیوسف علیه السلام دورونو په زړه کې دده په نسبت کینه پیدا کړه، یوه ورځ

یوسف علیه السلام خوب ولید چې یوولس ستوري دغه راز لمر او سپوږمۍ ده ته سجده لګوي، په سهار یې دا خوب خپل پلار ته بیان کړ، څنګه یې چې پلار حضرت یعقوب علیه السلام الهي پیغمبر وو، نو دده دخوب په تعبیر پوه شو او دا یې دنبوت بشارت وباله، له همدې امله یې ده ته وویل چې دا خوب خپلو ورونو ته بیان نه کړي، مګر بیا یې هم ورونو دده په اړه خپل حسد ونه زغملای شو، له همدې امله یې یوه ورځ یوسف علیه السلام دلوبو په بهانه صحرا ته بوت، هلته یې یوې څاه ته وغورځاوو، او شلیدلی کمیس یې په وینو رنګین شوی حضرت یعقوب علیه السلام ته راوړ، او ورته ویې ویل چې یوسف لیوه وخوړ.

یوسف علیه السلام په څاه کې دالله تعالی په ځانګړې ساتنه سره وژغورل شو، تردې چې دمصر دیوې قافلې کاروانیانو دی له څاه څخه راویوست او له ځان سره یې مصر ته دغلام په حیث یوووړ، څنګه چې یوسف علیه السلام دسیرت او صورت بې مثاله حسن او جمال درلود، په مصر کې یوازې د وخت یو حاکم (عزیز مصر ) په دې وتوانېد چې دده قیمت ادا کړي، عزیزمصر یوسف علیه السلام کورته راووست او خپلې ښځې ته یې سپارښتنه وکړه، چې ددې نوي ځوان ښه ساتنه او پالنه وکړي، ځکه چې موږ ته به یې ډیره فایده ورسیږي او یا به یې خپل زوی وګرځوو.

د عزیز مصر ښځه چې خپل نوی غلام یوسف علیه السلام ویني، نو دوخت په تیریدو سره په زړه کې عشق ورسره پیدا شو، او داسې کوښښ یې پیل کړ چې یوسف علیه السلام دځان خواته مائل کړي، خو یوسف علیه السلام پله پسې اعراض کاوو، یو ه ورځ یې یوسف علیه السلام په یوه بنده کوټه کې ایسار کړ او دعشقبازۍ غوښتنه یې ترې وکړه، یوسف علیه السلام په الله تعالی سره پناه وغوښته او دا کار یې دخپل بادار په حق کې ستر تجاوز وباله، او له دې ابتلاء څخه دځان

دخلاصون په خاطر يې ددروازې په خوا منډه واخيسته، دعزيز مصر ښځې په ده پسې لاس واچاوه او دنيولو په وخت يې دشالمن په لاس کې ورڅيرې شوه، په همدې مهال عزيز مصر په دروازه راننوت او دحالت پوښتنه يې وکړه، دپاچا ښځې دخپلې ګناه دپټولو او ځان سپينولو په خاطر په مکر سره ورته وويل چې دهغه چا چې ستاد اهل ( ښځې ) په حق کې دتجاوز اراده لري له دې پرته به يې بله سزا نه وي، چې يابندي شي او يادردونکي سزا ورکړل شي، په دې وخت يوسف عليه السلام هم له ځانه ددفاع په خاطر وويل چې په ده کې ملامتيا نه شته، بلکې ښځه ګرمه ده، ددې دعوې په مهال درواياتو له مخې په همدې کور کې موجود يو تي خور ماشوم شاهدي ادا کړه او ويې ويل، چې که ديوسف عليه السلام لمن دمخې له خوا څيرې وه نوګرم يوسف دی او که دشاخوا يې څيرې وه بيا ګرمه په ښځه کې ده، دغه وخت چې ګورې ديوسف عليه السلام دشاه لمن څيرې شوې ده، عزير مصر پوه شو چې ګناه دښځې ده، نو يې ښځه ګرمه کړه او يوسف عليه السلام ته يې وويل چې له دې پيښې څخه صرف نظر وکړي.

خو څرنګه چې د پاچا دښځې په زړه کې ديوسف عليه السلام محبت سخت ځای نيولی وو، هغه بيا هم له دې خبرو منصرفه نه شوه، په دې وخت چې دپاچا دښځې ددې عمل اوازه خپره شوې وه يوه ورځ دپاچا ښځې دخپل شاهي خاندان همځولې او همرازې ښځې راټولې کړې، په يوه کوټه کې يې کينولې، دخوراک لپاره يې ميوې او چړې په لاس ورکړې، او په دې وخت يې يوسف عليه السلام له يوې دراوزې څخه پرې راويوست، ديوسف عليه السلام دجمال په ليدو ټولو ښځو هوش له لاس ورکړ او دميوو په ځای يې لاسونه غوڅ کړل، او بې اختياره يې وويل چې دا ( يوسف ) بشر نه بلکې يوعزتمن ملک دی، دپاچا ښځې دغه مهال په

فخر او مباهات سره خپلو همځولو ته وويل چې هغه څوک دغه دی، چې تاسو يې په محبت باندې زه ملامتولم، مايوځل دی دځان خواته وغوښت خوده انکار وکړ، او که دی چيرې بيا زما خبره ونه مني، نو زه به يې بندي خانې ته وغورځوم، او يا به يې په حقارت او سختۍ مبتلا کړم.

سره له دې چې د يوسف عليه السلام ژوند له پيله امتحاناتو سره ملګری وو، خو داځل په سخت امتحان کې ولوېد، يوې خواته دپاچا ښځه دبدفعلۍ غوښتنه ترې کوي، او بلې خواته زندان دی، په همدې مهال يوسف عليه السلام وويل (رب السجن احب اليّ مما يدعوننی اليه )) ژباړه :ای زما ربه زندان راته د هغه څه نه زيات خوښ دی څه ته مې چې دوئ رابولي) په دې وخت کې ديوسف عليه السلام او دپاچا دښځې کيسه په خلکو کې هم مشهوره شوې وه او پاچا ددې په خاطر چې يوسف عليه السلام ګرم ثابت کړي، او ددې خبرو دنشر مخه ترېوه حده ونيسي، يوسف عليه السلام يې زندان ته واچاوو.

په زندان کې ديوسف عليه السلام ژوند داسې وو چې د هرمؤمن مبارز زنداني لپاره سرمشق بلل کيدای شي، دی په پوره حوصله، زغم او رضاء سره زندان ته داخل شو، په زندان کې يې سمدستي دذکر، عبادت او له رب تعالی سره درابطې هڅې لازياتې کړې، دغه راز يې دخپلو زنداني ملګرو درهنمايي او اصلاح لپاره دعوت پيل کړ، او په دې لاره کې يې ډير کار وکړ او دټولو زندانيانو په زړونو کې يې ديوه پاک او مصلح انسان په توګه ځای وموند، يوه ورځ دوو زندانيانو ده ته خپل خوبونو بيان کړل، يوسف عليه السلام دتعبير په مهال ورته وويل چې د دوی له جملې به يو اعدام شي او بل به ازاد شي، همداسې وشول، له دې وروسته به يوسف عليه السلام دټولو زندانيانو خوبونه تعبيرول، او صحيح تعبيرونه به يې ورکول.

د يوسف عليه السلام په زندان کې څو کلونه ووتل، يو وخت دوخت حاکم پاچا خوب وليد ، چې اوه چاغ غوايي راو ولاړ شي او اوه نورخوار غوايي وخوري، دغه راز يې په خوب کې اوه شنه وږي او اوه وچ وږي وليدل، ددې خوب دتعبير يې ډير تلاش وکړ، خو چاځواب ورنکړ، بلکې معبرينو ورته ويل چې دا اضغاث احلام (ګډوډ خوبونه) دي، وروسته پاچا خبرشو چې په زندان کې يو بندي دی، چې دخوبونو تعبيرکوي، خپل خوب يې ديوه چا په واسطه يوسف عليه السلام ته بيان کړ، يوسف عليه السلام تعبير ورکړ، چې په مصر باندې به اوه دابادۍ او ښيرازۍ کلونه راشي، او ورپسې به اوه نور دسختې قحطۍ کلونه راشي، دمصرپاچا بايد دښيرازۍ په کلونو کې غلې دانې او خوراکي شيان ذخيره کړي، ترڅو دقحطۍ په کلونو کې ترې استفاده وکړي.

پاچا ته چې کله دخپل خوب دا تعبير ورسېد نو ډېر حيران شو او دې تعبير او لارښوونو ډير اثر ورباندې وکړ، امر يې وکړ چې داڅومره پوه او حکيم سړی په زندان کې بندي دی، چې مونږ ته نه يوازې دخوب صحيح تعبير راکوي بلکې دمشکلاتو ددفعې لارې چارې هم راښيي، خپلو کسانو ته يې امر وکړ چې يوسف عليه السلام له زندان څخه راوباسي، دپاچا استازی زندان ته راځي او له يوسف عليه السلام نه غوښتنه کوي، چې له زندان څخه ووزي، خو يوسف عليه السلام ددوی له خبرې اعراض کوي، او هغه ته وايي چې زه له هغه وروسته له زندان څخه وزي، چې يوځل ځان له لګيدلي تهمت څخه سپين کړي، او دباچا استازي ته وايي چې ورشه خپل بادار ته دې ووايه چې دهغو ښځو دحال پوښتنه وکړي چې لاسونه يې غوڅ کړي وو ، له دې وروسته هغه ټولې ښځې ديوسف عليه السلام په پاکي باندې شاهدي ادا کوي، دغه راز

دوزير ښځه خپله ګناه مني او وايي چې په يوسف عليه السلام كې ګرمه نشته بلكې ملامتيا په دې كې ده او دې هغه ځان ته بللى وو، چې په دې سره يوسف عليه السلام خپل عصمت، صدق او له ګناه څخه پاكوالى ثابت كړ او له هغه وروسته بيا دې ته تيا رشو چې له زندان څخه راووزي.

## هغه څه چې ديوسف عليه السلام دزنداني كېدو له كيسې څخه يې زده كوو

ديوسف عليه السلام قصې ته په قرانكريم كې الله تعالى احسن القصص ويلي دي، ځكه دا كيسه د ډېرو زياتو مواعظو او پندونو درولودونكې ده، كه ديوسف عليه السلام دنور ژوند كيسه پرېږدو او يوازې يې دزندان په كيسه تمركز وكړو، داچې څنګه دى زندان ته داخل شو، په زندان كې يې څنګه ګوزاره وكړه او بيا څنګه له زندان څخه را ووت موږ ته راښيي، چې يومسلمان بايد په كوم حالت كې زندان ته اماده شي، او دحبس امتحاني موده څنګه تېره كړي.

داچې يوسف عليه السلام په زندان كې دننه دارشاد او دعوت مباركه وظيفه سرته رسوله او دخپلو ملګرو داصلاح او هدايت هڅه يې كوله، موږ ته راښيي چې دحبس موده هسې مهمل وخت ونه بولو، بلكې له دې وخت څخه دځان او نورو انسانانو داصلاح او ددين دخدمت لپاره استفاده وكړو، دغه راز كله چې يوسف عليه السلام له زندان څخه راوتل تردې پورې مشروط كوي، چې يوځل دې له ګول شويو تهمتونو څخه دده سپيناوى وشي، موږ ته راښيي چې ديو مسلمان اجتماعي اعتبار او عدالت څومره ضرور دى چې بايد داغدار نه شي، او مسلمان بايد هميشه دې ته متوجه وي، د زندان دفوائدو او فضائلو په باره كې شايد دا كافي وي چې علماء كرامو ويلي دي چې دزندان دتكاليفو د زغملو په بركت يوسف عليه السلام ته دنبوت درجه وركړاى شوه، چې دا ډېر سترمنقبت دى.

خو په سورة يوسف کې يوه ډېر پام وړ جمله داده چې يوسف عليه السلام زندان ته له داخلېدو وړاندې وويل ( رب السجن أحب الى ممايدعونني اليه ) له دې څخه ځيني خلک دا استنباطوي چې زندان په هر حالت کې ښه دی، ځکه چې يوسف عليه السلام محبوب بللی دی، دلته غواړو په دې قرآني آيت کې پرته باريکي او داچې يوسف عليه السلام په څرنګه حالت کې زندان محبوب بللی دی، درته روښانه کړو، ترڅو په دې مسئله زموږ دوروڼو مجاهدينو علم راشي، چې زندان مطلقا محبوب نه دی، ځکه زندان دالله تعالى يوه لويه ابتلاء او امتحان ده چې په صبر سره تيرول يې ډېر فضائل لري خو خطرات هم ورسره تړلي دي ځکه دا امکان هم لري، ديوچا دستردينې او دنيوي زيان سبب وګرځي.

ګڼ شمېر مجاهدين او په ځانګړې توګه ځوانان د الله تعالى په لار کې د دښمن سره زنداني کېدلو ته ديو مرغوب فيه عبادت په نظر ګوري او د الله په لار کې د ټپي کېدلو او شهيد کېدلو په څېردالله په لار کې زنداني کېدل هم لوی شرف ګڼي او دا ځکه چې د جهاد په موضوع په تقريرونو کې ځني نامتووينا وال او مقررين د الله تعالى په لار کې د بندي کېدلو ډېر فضيلتونه بيانوي، ځوانان ورته هڅوي او د الله تعالى په لار کې د زنداني کېدلو وېره داسې ردوي لکه د الله تعالى په لار کې شهيد کېدل او ټپي کېدل چې ردولای شي.

دا وينا وال اومقررين زندان ته تلل سنت يوسفي بولي، دزنداني کېدلو له وېرې احتياط کول په ډېروسختو ټکو ردوي، داحتياط خبرې اواحتياط ژوندبزدلي ګڼي او وايي چې دبې غيرتۍ اوبزدلۍ دژوند نه خوزندان ډېرښه دی، د يوسف عليه السلام دزنداني کېدلو خبره رامخې ته کوي او وايي چې يوسف عليه السلام په ګناه کې دازاد ژوند پر ځای زندان ته ترجيح ورکړې وه او ويلي يې ووچې (( رب السجن احب اليّ مما

يدعوننی اليه )) ژباړه :ای زما ربه زندان راته د هغه څه نه زيات خوښ دی څه ته مې چې دوئ رابولي ،،

دامحترم وينا وال وايي: څوک چې موږته دا احتياط توصيه کوي نو ورته وايوچې د بزدلۍ درس مه راکوئ ! او مه مو دزندان نه وېروئ ! دوئ وايي :زندان دوېرې شی نه دی نه ترې بايد مسلمان وه وېرېږي بلکې لکه د حضرت يوسف عليه السلام په څېر ووايې چې (( رب السجن احب اليّ مما يدعوننی اليه ))،

شايد د همدې بيانونو اغېزې به وي چې کله ناکله په ظاهره د ناهيلۍ کومه خبره يا حالت رامخې ته شي نو په مجاهدينو کې د يو تن نه يو تن د خولې نه دا خبره راوځي چې د بې غيرتۍ د دې حالت نه خو زندان ښه دی،

حقيقت دادی چې داويناوال ډېر محترم خلک دي ځکه چې دوئ ټولې وېرې شاته کوي او د جهاد په موضوع بيانونه کوي، مسلمان ځوانان د الله تعالی په لار کې قربانيو ورکولو او تکليفونو زغملو ته رابولي او په زرونو ځوانان يې دبيان اورېدلو نه پس دجهاد سپېڅلې لار ته راووځي، د تقرير او بيان دې شهسوارانو ته موږډېر دقدر په سترګه ګورودځان نه يې ډېر غوره ګڼو او د رايويې ډېر احترام کوو.

د دوئ جرأت او سپيڅلي احساس ته مې سلام دی خو چې خبره د شرعي مسئلې ده او غم د مسلمانانو د فکر د اصلاح دی نو وايم چې که شرعي اصول په پام کې ونيسو او احساساتی توب پرېږدو نو بايد ووايو چې د الله تعالی په لار کې زنداني کېدلو ته چې دوئ محترم او قدرمن ورونه په کوم حيثيت قائل دي د شرعي اصولو له مخې يې حيثيت دا نه دی او نه د حضرت يوسف عليه السلام پدې قول چې رب السجن احب اليّ مما يدعونني اليه باندې د دوئ استدلال درست دی.

اصلاً دې ته کتل پکار دي چې حضرت يوسف عليه السلام دا خبره په کوم حالت کې کړې وه او زموږ شريعت د حضرت يوسف عليه السلام دې خبرې ته په کوم نظر ګوري ؟ نو تر کومه چې د هغه د حالت خبره ده هغه خو قرآنکريم په ډېر روښانه ټکو موږ ته بيان کړيدی.

په کوچنيتوب کې د مور او پلار نه د جدا يی، کوهي ته د غورځېدلو او د جبري مريتوب د مختلفو مراحلو نه د تېرېدو او ډول ډول نورو تکليفونو زغملو نه پس چې قسمت هغه د نړۍ د ترټولو ستر او متمدن سلطنت په پلازمېنې کې د پاچا کورته راورسولو نو ډېر هوسا او د راحت نه ډک ژوند يې پيل شو خو دلته د يو بل مصيبت سره مخامخ شو او هغه دا چې ايله د ۱۹ يا ۲۰ کلونو پدې عمر کې يې چې خورا ډېره ښکلی، تندرسته، صحتمنده او نوې ځواني وه رومبی پرې پخپله د باچا هغه ښځه د ليونتوب تر حده عاشقه کېږي د کومې سره چې د ده شپه او ورځ په يو کور کې تېرېدله بيا يې په ټولې پلازمېنې کې حسن او ښکلی ځواني زخت زيات شهرت مومي او چې د ليدلو لپاره يې په پلازمېنې کې د مېشتو لوړپوړو چارواکو او غټو خلکو مېرمنې راغلې نو ټولو پرې زړونه داسی وبايلل چې خپل لاسونه يې پرې کړل خو پرې پوه نه شوې.

نو بس يوا ځې حضرت يوسف عليه السلام و او چارچاپېره ترې بې شمېره خورا ښکلي او مضبوط جالونه وو چې يوا ځې دهمده د راګېرولو لپاره غوړېدلي وو، دهمده د جنسي غوښتنو د راپارولو او د زهد او تقوی ماتولو ټول تدبيرونه پکار اچول شوي وو، هر لور ته ګناه د خپلې ټولې ښکلا سره مل ولاړه ده او دې ته انتظار باسی چې کله هم ورته د دې ځوان په زړه کې کوم چنی ميلان پيدا شي نو ورته ځان وړاندې کړي.

دا ځوان شپه او ورځ په همدې غم کې دی اودا وېره ورسره ملګرې ده چې که یوه لمحه هم دغفلت ښکارشو یا یې په عزم کې کوچنی لغزش رامنځته شو نو ورنه چارچاپېره تاو دګناه کمربند به مات او په یوې نه یوې دروازې به یې ننوځي نو ځکه یې وویل چې زما ربه ! دې مېرمنو چې په ګناه کې زما داخته کولو یازندان ته دلېږلو عزم کړیدی نو زه په ګناه باندې زندان ته ترجیح ورکوم.

نو یوسف علیه السلام چې درب السجن احب الیّ خبره کړیده په داسې سخت حالت کې یې کړیده چې د زندان پرته دګناه نه دخلاصون بله هیڅ لار ورته نه ښکاریده، موږ که (( رب السجن احب الیّ )) وایو او زندان ته تلل دیوسف علیه السلام د سنتو راژوندي کول ګڼو وړاندی باید وګورو چې موږ دحضرت یوسف علیه السلام په څېر حالت سره مخامخ یو ؟

بل داچې داحب معنی زندان ته دتللو سره مېنه نه ده بلکې علامه قرطبی رحمه الله داحب الیّ لاندې لیکلي: ای اسهل علی واهون من الوقوع فی المعصیة لا ان دخول السجن ممایحب علی التحقیق.

یاني د احب معنی داده چې په ګناه کې داخته کېدو په پرتله راته زندان ته تلل اسان دي دامعنی نه ده چې دزندان سره مې رښتینې مېنه ده

علامه بقاعی رحمه الله تعالی په خپل تفسیر ((نظم الدرر)) کې دلته ډېر ښکلی بحث کړیدی اوفرمایلي یې دي چې داحب الی معنی اکثرحباً نه ده بلکې معنی یې اقل بغضاً، یاني ګناه کې اخته کېدل اوزندان ته تلل یو هم داسې نه دی چې ورسره مینه وشي بلکې دواړه ددې وړ دي چې ورسره بغض وشي، خوداچې دکوم یو سره باید زیات اودکوم یو سره لږ بغض وشي ؟ نو حضرت یوسف علیه سلام روښانه کړه چې ګناه

سره مې بغض زيات او زندان ته د تللو سره مې د ګناه په پرتله بغض کم دی، يوسف عليه السلام دا قل بغضا نه ولی تعبير په احب الی سره وکړ ؟ ددې علامه بقاعی رحمه الله تعالی ډېره په زړه پورې علمي نکته ذکرکړې خو ځکه تری تېرېږوچې اوږده ده او داسې اسانه هم نده چې هرڅوک ورباندې پوه شي. لنډه دا چې نه خو ددښمن سره زنداني کېدل په خپل ذات کې محبوب شی دی او نه زموږ حالت دحضرت يوسف عليه السلام حالت ته ورته دی چې رب السجن احب الیّ ووايو.

خوبالفرض که څوک ديوسف عليه السلام حالت ته ورته حالت سره مخامخ شي نو دشرعي لارښوونونه داسې جوتېږي چې بياهم داسې ندي ويل پکار بلکې تل د الله تعالی نه د عافيت سوال پکار دی، الله تعالی ته ديوسف عليه السلام په باره کې هم دا خوښه وه چې دعافيت سوال يې کړی وای ځکه چې ځنې روايتونو کې راغلي دي چې کله يوسف عليه السلام زندان کې واچول شو د الله تعالی له لورې ورته وحې وشوه چې ,, تا خو په زندان کې خپل ځان پخپله اچولی دی ځکه چې تا ويلي چې ,, رب السجن احب الیّ ،، که تا عافيت غوښتی وای نوعافيت به دې په برخه شوی وای.

امام بيضاوي رحمه الله تعالی په خپل تفسير کې دلته فرمايي چې : وقيل انما ابتلی بالسجن لقوله هذا و انما کان الاولی به ان يسأل الله العافية. ژباړه:په يوسف عليه السلام دزنداني کېدلو ابتلاء دهمدې خبرې له امله راغلی وه، دهغه لپاره غوره داوه چې دالله تعالی نه يې دعافيت سوال کړی وای.

دلته دا خبره هم بايدله ياده ونه باسوچې په اوسنو حالاتوکې ددښمن په زندانونوکې دمسلمانانودزنداني کېدلو اوديوسف عليه

السلام دزنداني کېدلو ترمنځ ډېرتوپيردی اوپه هيڅ دليل يودبل سره نه شي مقايسه کېدای ځکه چې يوسف عليه السلام ته په زندان کې ډېرد قدر په سترګه کتل کېدل، هيڅ ډول جسماني تکليف ورته نه ورکول کېدلو، په زندان کې دننه يې خلکو ته دحق اوصداقت پېغام هم رسولو اوخلک يې دالله تعالی يووالي ته رابلل، چا چې زندان ته استولی و اودچا په زندان کې چې و هغوئ څه د حضرت يوسف عليه السلام محارب دښمنان نه وو او نه هغوئ حضرت يوسف عليه السلام ته د دښمن په سترګه کتل بلکې صديق او امين يې باله د زنداني کېدو نه وړاندې يې د باچا په کور کې د شهزادګانو په څېر ژوند تېراوه او د زندان نه د وتلو نه پس يې د همدوئ په حکومت کې ګويا د مالي د وزير په توګه دنده هم اجرا کړه خو بيا هم مفسرين فرمايي چې کان الاولی به ان يسأل الله العافيه ژباړه: د يوسف عليه السلام لپاره غوره دا وه چې د الله تعالی نه يې عافيت غوښتی وای.

او په يو روايت کې راغلي چې الله تعالی حضرت يوسف عليه السلام ته وفرمايل چې ,, يا يوسف انت حبست نفسک حيث قلت رب السجن احب اليّ ولو قلت العافية احب اليّ لعُوفيتَ ،،

يوسفه ! تا پخپله د خپل ځان لپاره زندان غوره کړ چې رب السجن احب اليّ دې وويلو او که العافيه احب اليّ دې ويلی وای نو عافيت به دې په برخه شوی وای.

نو يوسف عليه السلام چې په زندان کې يې هيڅ ډول سپکاوی نه کېدلو، د زنداني کېدلو د تکليف پرته د بل يو ډول ستر فزيکي يا رواني تعذيب يا تکليف سره نه و مخامخ او که مخامخ شوی وای نو د هغه عزم د پېغمبرانو عزم و، د لوی زغم او صبر مالک و د هر ډول تکليف ګاللو

توان يې درلودلو او هيڅ ډول بې صبري به ورنه نه وای شوی خو بيا هم ورته د عافيت غوښتل غوره ګڼل کېږي نو اوسني زندانونه چې پکې مجاهدين د خورا سختو زياتو ظلمونو او وحشتونو ښکار کېږي، ډېرسپکاوی يې کېږي او د ډول ډول رواني فشارونولاندې راوستل کېږي نو آيا دزندان نه عافيت غوښتل به ورته ضروري نه وي ؟

بيا ډېره مهمه داده چې په زندان کې دتکليفونو زغمل او ورباندې صبر هم څه اسان کارندی، کومو مسلمانانوچې زندانونه تېر کړيدي هغوئ ترې ډېرښه خبردي، نو ځان په زوره لويې ابتلاء ته وراندې کول عقلمندي نه ده.

دترمذي شريف حديث دی: عن حذيفة قال قال رسول الله صلى الله لاينبغى للمؤمن ان يذل نفسه، قالوا وكيف يذل ؟ قال ان يتعرض من البلاء ما لايطيق.

ژباړه: حذيفة رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل: ديو مومن سره دانه ښايي چې خپل ځان ذليل کړي، ناستو مسلمانانو پوښتنه وکړه چې مومن به څنګه ځان ذليل کوي ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل دځان ذلت دادی چې داسی مصيبت ته ځان وړاندي کړي چې طاقت يې نه لري.

څرګنده ده چې داوسنو زندانونو تکليفونه داسی ندي چې انسان يې دزغم توان ولري.

هغه ورونه چې په مجاهدينو کې کلک ګڼل کېږي چې په هغوئ کې ځينو دځان وژنې هڅې کړيدي نو ددې زندانونودا تکليفونه به څومره وي ؟ !او څرنګه به دزغم وړوګڼل شي؟

په صحابه ووکې چې کوم صحابي دالله تعالی نه صبر غوښتی يايي رسول الله صلى الله عليه وسلم ته عرض کړي چې د الله تعالی نه راته

صبر وغواړه نو رسول الله صلی الله علیه وسلم پرې رد کړیدی او فرمایلي يې دي چې د مصیبت غوښتونکی یې چې د الله تعالی نه صبر غواړې ؟ یاني دصبر اړتیا خو د مصیبت پر مهال وي او د مومن لپاره د مصیبت نه بلکي دعافیت غوښتنه پکار ده، رسول الله صلی الله علیه وسلم به تل خپلو صحابه ووته فرمایل چې: سلوا الله العافیة یعني: دالله تعالی نه دعافیت ( دغمونو، دردونو، مصیبتونو او آفتونو نه دخلاصون ) غوښتنه کوئ ! دمسلمان شان دادی چې پخپله به مصیبتونو ته دعوت نه ورکوي بلکي ورنه به وېرېږي او دځان ساتلو اسباب به یې اختیاروي خو که پرې اخته شي نو صبر به کوي او پرې به دالله تعالی نه داجر امید لري.

نوزندان یاني درذیل، خونخوار او وحشي دښمن په لاس کې پرېوتل چې یو ستر مصیبت دی تري ویریدل او ورنه دځان ساتلو ټول احتیاطي تدابیر اختیارول څه بزدلي نه ده بلکې د الله تعالی حکم پرځای کول او دشریعت په سپیڅلو اصولو عمل کول دي چې همدا دین دی، دخپل ځان نه څه ته ښه یا بد ویل یا دخپلو احساساتو تابع کېدل دین نه دی بلکي دشرعي اصولو متابعت دین دي. الله دې یې زموږ دټولو په برخه کړي آمین.

## په افغانستان کې دزندانونو په اړه څو عمومي یادونې

زندان او توقیف ددرست بشر دتاریخ په څیر دافغانستان له تاریخ سره هم له ډیر پخوا څخه کوشیر خوړلی، افغان سلاطینو سلګونه کلونه پخوا لا دخپل مخالفینو لپاره زندانونه جوړول، او له دې چارې یې دخپل سلطنت دساتنې دیوې ویرونکي حربې په توګه کار اخیست.

لکه څنګه چې دنړۍ په تاریخ کې ځینې مهمې پیښې له زنداني تعذیبونو او بندیانو له اغتشاشونو څخه پورته شوي دي ( دبیلګې په

توګه دفرانسي انقلاب چې درسته اروپایې بدله کړه د زندان له پاځون څخه پیل شو ) په افغانستان کې هم زندان همیشه دتاریخي پیښو او بدلونونو دپاموړ سرچینې په شکل بروز کړی دی.

په افغانستان کې هم ډیر ځله دزندان څخه تښتیدلی بندي دپاچاهي په نړولو توانیدلی، دغه راز دهیواد سهارنی واکدار په ماښام کې دزندان تیارو ته لویدلی دی، د ۱۹ پیړۍ په وروستیو او ۲۰ میلادي پیړۍ په لومړیو کې چې هیواد مو په پله پسې توګه ترانګریزي ښکیلاک لاندې و، دغه راز دیوې اوږدې مودې لپاره مو دهیواد زعامت او بهرنی سیاست دنړیوالو اشغالګرو لخوا اشغال شوی و، دهیواد د ازادي غوښتونکي قشر دغوښتنو او دخپلواکۍ دداعیې په ټکولو کې زندان او زنداني تعذیب ته د یوازینۍ مؤثرې وسیلې په سترګه کتل کیدل.

په دې زمانه انګلیس پالو واکمنو دهیواد داستقلال غوښتونکي او پوه قشر داېل کولو او له منځه وړلو لپاره ستر ستر زندانونه جوړ کړل، او دتعذیب ډول ډول آلات یې په کې نصب کړل، تړل، ولچک، غرب وغراب، زولانه، قین قین، خوب ته نه پرېښودل او ړندول دسزاګانو هغه نومونه او ډولونه دي چې بندیان ورسره همیشه مخامخ وو، دغه راز داعدام لپاره هم له ډیر بوږونکو طریقو لکه سره شوي تېل، دتوپ خولې ته تړل، دونې دښاخونو په زور څېرل، برچه پک، چارماري، غرغره، دبدن غړي پرې کول او په صلیب کولو غوندې له بوږنوونکو طریقو څخه کار اخیستل کیده.

هغه مهال په پلازمینه کابل کې بالاحصار، دشیرپور قشله، دارګ زندان او دشوربازار د سرای چقورک زندان له پیژندل شویو زندانونو

ځخه وو، چې ډيرې تنګې، نمجنې او تيارې کوټې او تاکاوۍ يې درلودې او بنديانو به په کې په خورا بدو شرائطو کې ژوند کاوه

له هغه را وروسته دظاهرخان او داود خان دواکمنيو په مهال هم په هيواد کې دزندان جوړولو، زندان پراخولو او زنداني کولو بهير په قوت کې روان و، په ۱۳۳۵ ه ش کې چې په کندهار کې ديني علماء کرامو دسينما او دښځو دبې سترۍ په ضد مظاهره وکړه، زياتره يې دوخت دحاکم رژيم لخوا زندانونو ته واچول شول، دغه راز له هغه وروسته په بيا بيا دهيواد په ګوټ ګوټ کې علماء کرام او دشرعي اصلاحاتو مبارزين دوخت درژيموالو لخوا نيول کيدل او په حبس محکوميدل، څنګه چې داولس دحق غوښتونکي غږ په وړاندې دحکومت رويه سختيدله، او په مقابل کې داولس په منځ کې دمبارزې فکر هم زور اخيست، دزنداني کيدلو او نيولو پيښې هم زياتې شوې، او دوخت حکومت مجبور شو، چې په هيواد کې دزندانونو چارو ته ځانګړې پاملرنه وکړي.

په دې موده کې دزندانونو دتوسعې او کنترول لپاره دکورنيو چارو په وزارت کې دمحبسونو او صناعتونو په نوم يو عمومي رياست پرانيستل شو، چې په پلازمينه او درستو ولاياتو کې يې دزندانونو چارې په نوې بڼه تنظيم کړې، دسردار داود دواکمنۍ دوران دافغانستان په سطحه دزندانونو دتوسعې له اړخه مهم پړاو و، دده په وخت کې دپل چرخي ستر زندان بشپړ شو، دغه راز دکندهار دسرپوزې د زندان په شمول دهيواد په لراوبر کې ګڼ زندانونه جوړ کړای شول.

کله چې په افغانستان کې کمونيستان قدرت ته ورسيدل نو دلته په ډله ايزه توګه دزنداني کيدلو، شکنجو، تعذيبونو او عام وژنو

بېساري دوران پيل شو، کمونيستانو هر هغه څوک زندان ته اچول چې ددوی له حکومت، افکارو او عقايدو سره يې مخالفت درلود او يابه يې ددوی له خندونکو فرامينو څخه غاړه غړوله.

## دکمونستانو دمهال دزندانونو وضعيت او جنايات

کمونيزم له لويه سره يوه جاني، بې رحمه، وژونکې او وحشتناکه پديده وه، چې نړيوال بشريت ته يې سخت زيانونه واړول، که دنړيوال کمونيزم جنايت په تفصيل سره يادوو نبايي دا ديوې مقالې ترحوصلې لوړه موضوع وي، افغاني کمونيستان چې ځانونه به يې ترمارکس مارکسسترين کمونستان بلل، دنورو افراطي کړنو غوندې دبشري جناياتو او مظالمو په برخه کې هم خورا سخت دريځه او بې رحمه ثابت شول، دوی دخپلې ۱۴ کلنې واکمنۍ په مهال دافغانستان په لراوبر کې په خپل اولس هغه ظلمونه وکړل چې په منځنۍ اسيا او ختيځه اروپا کې يې دستالين کمونيستي جنايات له بشريت څخه هير کړل.

دوی دغوايي له کودتا سره سم دخلکو په نيولو او زنداني کولو لاس پورې کړ، په پلازمينه او ولاياتو کې په تيارو شويو زندانونو سربيره دولسواليو او ولايتونو دامنيه قومندانيو ودانۍ او داګسا او خاد په نوم دا ستخباراتو رياستونه هم دزندانونو يا توقيف خانو په توګه کاريدل، د زنداني کولو په چاره کې کمونيستان دومره افراطي وو، چې هسې د شک يا غلطو معلوماتو له امله يې هم خلک زنداني کول، اوډير ځله خو يې سلامتې کورنۍ له ښځو او ماشومانو سره زندان ته اچولې، له همدې امله وه چې دبنديانو شمير په خورا چټکۍ سره زيات شو، او

حجم يې دهيواد له شته محبسونو او توقيف خونو څخه ډير شو ، دامهال نو کمونيستانو دهمدې زندانيانو په اعدام لاس پورې کړ ، او په شپه شپه کې يې نيول شوي هيوادوال په پله پسې توګه له زندانونو ايستل او اعدامول ، ددوی ددې کړنو دتوجيه لپاره يوه کمونيستي رهبر حفيظ الله امين په پوره صراحت ويلي و ، چې :(( موږ شل مليوني افغانستان ته ضرورت نلرو ، بلکې زموږ لپاره کافي ده چې يوه پنځوس زريزه نمونه پروليتاريا ( سوسياليستي ټولنه ) ولرو )).

داسې ويل کيږي چې ډير ځله خو دزندانيانو داعدام دنورو عواملو په ځای يوازې ددې لپاره کيدل چې دنويو نيول کيدونکو کسانو لپاره ځای خالي شي ، داسلامي امارت دواکمنې په مهال دداخله وزارت دمحابسو دعمومي رياست په ارشيف کې د خاد دمشر ډاکټر نجيب لخوا امضاء شوی داسې سند وموندل شو چې نوموړي دپل چرخي دزندان مسؤلينو ته ليکلي وو چې ((غرض تخليه زندان ۹ هزار تن از متهمين به پاکستان اعزام شود )) کله چې ددې مکتوب دمطلب په اړه دهمدې رياست له پخوانيو کارکوونکو څخه پوښتنه کيږي ، هغوی وايي چې هغه مهال دپول چرخي دمسؤلينو او خاد ترمنځ دپوليګون شفري نوم پاکستان و ، نو دا امر ددې لپاره ورکول شوی و ، چې دزندان دتخليې لپاره دې ۹ زره بنديان پوليګون ته ولیږل شي يعني اعدام دې شي !!.

دکره معلوماتو له مخې دکمونستانو دواکمنۍ په مهال يوازې دپل چرخي دزندان تر يولک او ديرش زرو ډير زندانيان په ډله ايزه توګه اعدام شوي يا ژوندي ترخاورو لاندې شوي دي ، چې په دې خلکو کې اکثره دهيواد مخور علماء ، صوفيان ، مدرسين ، مخور سپين ږيري ، دپوهنتون زده کوونکي ، استادان او دهيواد دتعليميافته قشر ځوانان او سپين روبي شامل وو ، دا خلک پل چرخي ته نږدې په هوارو سيمو د

ده سبز په دښته، پوليګون، دچمتلې په دښته او ځينو نورو سيمو کې په ډله ايزه توګه ښخ شوي دي، يوه پخواني کمونيست جنرال په دې وروستيو کې ويلي دي، چې په يادو سيمو کې د ټانګونو پخوانۍ موضع ګانې چې دعسکري تمريناتو لپاره به کار ترې اخيستل کيدو، له همدې بنديانو څخه ډکې شوي دي او بيا خاورې پرې اړول شوي دي.

له کابل پرته دهيواد دنورو ولاياتو په زندانونه کې هم وضعيت همدومره وحشت ناک او بوږنوونکی و، او په ټولو زندانونو کې قتل او تعذيب روان و، دبيلګې په توګه په جنوب ختيځ زون کې لوی محبس (دګرديز مرکزي محبس) چې دښار لويديځ ته موقعيت لري، داسې شواهد شته چې په زرګونو زندانيان يې قتل شوي دي، دمحبس لويديځ لورې ته اواره دښتي سيمه چې د(پړاو) به نامه يادېږي، په بيلابيلو ځايونو کې يې ډله ايز قبرونه موندل شوي دي، اوکه په دې سيمې کې دقيقې پلټنې وشي ښايي دلته دترسره شوي وحشت نور اثار هم وموندل شي،

دکندهار دسرپوزې زندان چې دهيواد له سترو زندانونو څخه شميرل کيږي هم دهمداسې قتل عامونو شاهد و، ددې زندان نه يوازې په شاوخوا سيمو کې خلک په ډله ايزه توګه وژل شوي او دفن شوي دي، بلکې دزندان په محوطه کې هم ډير خلک ترخاوره لاندې شوي دي

د ۲۰۰۳ ميلادي کال دجون په مياشت چې دسرپوزې له زندان څخه مجاهدينو يو لنډ تونل وهلی و، او يوشمير مجاهدين ازاد شوي وو، دهمدې جريان يو برخوال او عيني شاهد ملامحمد نسيم وايي، چې دتونل وهلو په مهال په پله پسې توګه دانسانانو هډونه راختل، او دزندان محوطه داسې معلوميده لکه يو ډلييز قبر چې وي، له دې څخه معلوميږي چې

كمونيستانو پـه دې زنـدان كې هم سـخت جنايـات ترسـره كـړي دي، او ډيـر بنديان يې دزندان په محوطه كې دننه ترخاورو لاندي كړي دي.

په هرات ولايت كې هم دكمونيسـتانو دمهـال دشـهيدانو سـتر ډلـه ايـز قبرونـه مونـدل شـوي دي، چې لسـګونه زره كسـان پـه كـې دفـن دي، دهـرات دشـهيدانو مشـهوره هـديره ( شـهداى ګمنـام ) پـه دې سيمه كې دكمونيسـتي جنايـاتو ژونـدي او تلپـاتې شـواهد دي، پـه دې سـربيره دننګرهار دثمرخېلو دښـته، دلغمـان دمهـترلام بابـا او سـرخكانو دښـتې دكونړ كراړه، دكندهار منزل باغ او دصوفي صاحب دښت هغه ځايونه دي چې دكمونيستانو دمهال دډله ايزو قبرونو اثرات په كې شتون لري او كه په پلټنې په كې ترسره شي، دكمونيسـتي مهـال لـه زنداني كسـانو سـره دترسره شوى جنايت ډير اړخونه به ترې روښانه شي.

په ټوله كې دكمونيسـتانو د واكمنـۍ دوره دافغانسـتان پـه تـاريخ كې د ظلم، زنداني تعذيبونو او دزندانيانو سره دناسم چلند او وژنو لـه اړخه ترټولو توره او بوږنوونكي دوره وه، چې شـايد دبشـريت تـاريخ يې ډير لږ مثالونه ولري، په دې دوره كې نه يـوازې داچې دهيـواد پـه لراوبـر كې دزندانونو او توقيف خانو زيـاتره بنـديان ورك او ووژل شـول، بلكې كـوم چې ژونـدي راخـلاص شـول هغـه هـم دناسـمو شـرايطو لـه املـه پـه هميشـنيو امراضـو لړلـي او روحـي رنځـوران وو، داځكـه چې هغـه مهـال دزندان مفهوم له اصلي هدف څخه چې (داصلاح ځـاى ورتـه ويـل كيـږي) تغيـر كـړى و، او يـوازې دتعـذيب پـه ځـاى بـدل شـوى و، دزنـدانيانو داوسيدلو شرايط خورا سخت وو، چې په ژمي كې به له يخ او په اوړي له ګرمۍ ځوريدل، دزندانيانو حفظ الصحې تـه توجه نـه كيدلـه او نـه يې دذهني بوختيا او تعليم لپاره كوم شرايط موجود وو.

# امریکایي یرغل چې ورسره دزندان جوړولواوډکولو نوې لړۍ پیل شوه

له امریکایي یرغل وړاندې داسلامي امارت په دوره کې دزندانونو دوضعیت په اړه به ووایو، چې اسلامي امارت ښایي دافغانستان په وروستیو حکومتونو کې هغه یوازینی حکومت و، چې ډیر محدود شمیر بندیان یې درلودل، داسلامي امارت په مهال دسپیڅلي شریعت له نفاذ سره دجرمي پیښو کچه خورا کمه شوه، او له امارت سره یوازې دمخالفینو ځیني جنګي اسیران بندیان وو، دبندیانو دتربیې لپاره په زندانونو کې تعلیمي او تدریسي سلسلې پیل شوې، چې د ډیرو بندي هیوادوالو داصلاح او هدایت سبب وګرځېدې، مګر داسلامي امارت دمخالفینو په خوا کې دبندیانو په وړاندې جنایات په خورا بوږنوونکي توګه روان وو، دهیواد په شمال کې دجنبشي قوماندان جنرال مالک لخوا داسلامي امارت تر دری زره زیات هغه بندیان په ډله ایز ډول ددښت لیلې او حیرتان په سیمو کې په ډله ییزه توګه شهیدان شول، چې هلته دیوې موافقې له مخې ورغلي وو او وروسته غدر ورسره شوی وو، ددې پیښنو په اړه نړیوالو بشري ادارو هم څیړنې کړې دي او په دې سیمو کې یې بوږنوونکي جنایات تائید کړي دي، په دې سربیره دهزاره جاتو په سیمو کې هم په بیا بیا داسلامي امارت نیول شوي افراد ددښمن لخوا په ډله ایزه توګه ووژول شول، دعیني شاهدانو له قوله کله چې داسلامي امارت لخوا دیکاولنګ ښارګوټی فتحه شو دښمن له

تيښتي وړاندې په دې سيمه کې موجود زندان ته لاسي بمونه ورغوځولي وو او ټول بنديان يې چې شمير يې لسګونه وو په شهادت رسولي وو، په پنجشير کې بيا دنظار شورا ټوپکوالو له بنديانو سره په سخت چلند سربيره په دوی شاقه کارونه کول، لارې او زابوران يې پرې جوړول، او سخت وضعيت يې ورسره کاوه، چې دا له انساني حقوقو څخه څرګند مخالفت و.

د ۲۰۰۱ ميلادي په اکتوبر کې امريکايانو په افغانستان پوځي تيری وکړ، او له کابل څخه يې د اسلامي امارت د مجاهدينو له عقب نشينۍ وروسته واک خپلې يوې اجيرې ادارې ته وسپاره، د دې يرغل او نوي رژيم له راتلو سره هم مهال هم کټ مټ هغه څخه تکرار شول چې د کمونيستانو د واکمني او شوروي يرغل په مهال شوي وو، امريکايي يرغلګرو او تحت الحمايه رژيم يې د کمونيستي خاديانو غوندې د اولس په زنداني کولو پيل وکړ، په لومړيو کې هر هغه ځوک د طالب او مجاهد په شک نيول کيده او زندان ته اچول کيده چې ظاهري صورت او سيرت به يې له نبوي سنتو سره موافق و.

د رژيم او يرغلګرو له رسمي زندانونو سربيره په دې توره دوره کې د شخصي زندانونو پديدې هم سر راپورته کړ، دهيواد په لراوبر کې ټوپکسالاران، داړه ماران او دبهرنيو استخباراتو اجيران دبيلابيلو موخو لپاره د شخصي زندان جوړولو په فکر کې شول، دهيواد په شمال کې جنبشي قومندانانو، دغه راز دنظار شورا ټوپکيانو چې هغه مهال يې په کابل او يو شمير مرکزي ولاياتو کې د امريکايي يرغل لپاره مقدمة الجيشي دنده په مخ وړله، ډيرو يې شخصي محبسونه جوړ کړي وو، چې

د شخصي غـچ اخيسـتلو ، بنـدي خرڅولـو ، د پيسـو لپـاره برمتـه کولـو او نورو موخو لپاره يې ترې کار اخيست.

دا مهال نودا زندانونـه دهمدې خود سره او اوباشه ټوپکيـانو لپـاره د پيسو پيدا کولو ترټولو ښه منبع وه ، امريکـايي يرغلګر چې هغـه مهـال دافغانستان دوضعې او د دوست او دښمن دپيژندلو په چاره کې د چا خبره راندې چرګان وو ، دهمدغو جګړه مـارانو پـه لومـه کې ښکيل شوي وو ، او خلک يې يوازې ددوی په مشورو او اشارو باندې نيول اوزنداني کول.

څنګه چې امريکايانو به دهر مجاهد په سر همدې قومندانانو تـه امتيازات ورکول، نودوی هم ټوله هڅه کوله چې يوڅوک زنداني کړي او بيا يې په امريکايانو باندې وپلوري.

هغـه مهـال دافغانسـتان پـه بيلابيلـو سيمو کې معلـوم الهويتـه قومنـدانان او ټوپکسـالاران پــه دې جنايـت بوخـت وو دوی د شخصـي اغراضو په خاطر خلک نيول او بيا يې امريکايي استخباراتو ته سپارل، اوله هغوی نه يې په مقابل کې پيسې اخيستلې، دهيـواد پـه شمال تخـار او کندز کې دتخار مشهور جګړه مار جنرال داود ، پيرم قل ضيايي او ډله يې، په بلخ، هزاره جاتو او شمالي صفحاتو کې جنرال دوستم، فـيض الله ذکي، اسحاق رهګذر، محمد محقق عطامحمد نور او نـور ټيـټ پـوړي قومندانان او ټوپکوال يې، په لويديځ افغانستان کې تورن اسمعيل او ټوپکـوال يـې، پـه هلمنـد کـې اميـردادو او اخونـدزاده شـيرمحمد ، پـه کنـدهار کـې خالـد پښـتون، ګـل اغـا شـيرزی، احمـدولي کـرزی، اکـرم خاکريزوال، عبدالرازق، کرم، نازک، حاجي ګلالی، خال محمد ، اغاشاه او نور، په روزګان کې خان محمد خـان او مطيـع الله پوپـل پـه زابـل کـې

تورقوماندان، حمیدالله توخی او نور افراد یې، په غزني کې اسدالله خالد او په وردګو کې مظفر الدین او دنظار شورا ټوپکوال، په لوګر کې عتیق لودین، په پکتیا کې پاچا خان ځدراڼ، عبدالله مجاهد، اسحاق ګردیزی او عبدالمتین حسین خیل، په خوست کې خیال باز شیرزوی، دلبرجان ارمان او نور ټوپکوال، په پکتیکا کې زکیم خان قومندان، په ننګرهار کې ظاهر قدیر، حضرت علي، په کونړ کې ملک زرین دغه راز دهیواد په مرکزي ولایاتو او کابل ته څېرمه سیمو کې دنظار شورا پورې تړلي قومندانان لکه قسیم فهیم، بسم الله خان، بابه جان، ګل حیدر، سید خیلي، بصیر سالنګي او نور په دا ډول جنایاتو بوخت وو.

په دې مهال کې دهیواد په بیلابیلو سیمو کې دطالبانو او مجاهدینو په تور نیول شوي زندانیان دهمدې جګړه مارانو په لاس نه یوازې امریکایانو ته وسپارل شول بلکې په زرګونو یې قتل عام هم شول، په همدې لړ کې په کندز، بغلان، هزاره جاتو بلخ، شبرغان، او ځینو نورو سیمو کې دا تراژیدۍ رامنځته شوې، په کندز کې چې کوم مجاهدین دملل متحد په منځګړیتوب دیوې موافقې له مخې په دې شرط رشید دوستم ته تسلیم شول چې په خوندي توګه به جنوبي ولا یاتو یعنې هر څوک خپلو سیمو ته لیږدول کیږي، زیاتره یې یا ځای په ځای ووژل شول او سلګونه نورو یې ترمزار پورې په کانتینرونو کې دساتنګۍ له وجې په شهادت ورسیدل، دزابل ولایت دسیوري ولسوالۍ او سیدونکی ملا محمد اکبر چې له دې پیښې روغ راوتلی وایي چې هر کانتینر ته تر سلو ډیر کسان ورواچول شول، دی وایي کله چې دکانتینر دروازه راپسې وتړل شوه، نوسم دستي نفس تنګي پیدا شوه، په دې کې دځینو ملګرو

د کانتینر لاندینۍ غولي ته پام شو چې دلرګینو دړو (تختو) څخه جوړ و، نو موږ هغه دړې ټولې وایستې او په دې توګه د کانتینر لاندې برخه خلاصه شوه او تازه هوا راغله چې له همدې امله زموږ ملګري روغ پاته شو و، خو کله چې مزار ته ورسیدو و مو لیدل، چې دا کثره کانتینرو ټول بندیان پرته له دوو دریو کسانو څخه شهیدان شوي وو.

له دې پیښې وروسته په قلعه جنګي کې د دوستم ملیشو دامریکایي استخباراتو په اشاره د زندانیانو د قتل عام لپاره یو دسیسه جوړه کړه چې په پایله کې د مزار په قلعه جنګي کې بندي په سلهاوو زندانیان په شهادت ورسیدل، دغه راز په همدې موده کې یو زیات شمیر بندیان د شمال په بیلابیلو برخو کې په پټه او ښکاره توګه شهیدان شول، یا ترډیره وخته په شخصي زندانونو کې وساتل شول او وروسته خپلو کورنیو ته د پیسو په مقابل کې ورپریښودل شول، په دې موده کې د شبرغان زندان یوځل بیا د سترو جنایاتو شاهد و، په دې زندان کې هم ډیر کسان زنداني شول، چې ډیر کم شمیر یې بیرته ژوندي راخوشي شول په افغانستان له امریکایي یرغل وروسته د شخصي زندانیانو د ساتلو په چاره کې نه یوازې افغان جګړماران بوخت وو، بلکې د دې کار لپاره یو شمیر بهرنیان هم افغانستان ته راغلي وو، د ۱۳۸۳ هش کال په منځنیو میاشتو کې د کابل په کارته پروان کې یو داسې زندان ومونډل شو، چې د جک آی ډیما په نامه یوه امریکایي تبعه په شخصي توګه جوړ کړی او زندانیان یې په کې ساتل، وروسته ده وویل چې په دې کار کې د نظار شورا قومندانان او د کرزي د اداري لوموړی د معارف ! !وزیریونس قانوني هم ورسره شریک و.

امريكايانو له يرغل سره سم دزندانيانو د ساتلو لپاره بيلابيل زندانونه جوړ كړل، په دې زندانونو كې ځيني يې ښكاره وو، مگر ځينې نور يې داسې وو چې تراوسه يې موقعيت نه دى تشخيص شوى، دكندهار هوايي ډگر، دبگرام زندان، دخوست هوايي ډگر او يو شمير نور دامريكايانو له ښكاره زندانونو څخه و، دغه راز په بيلابيلو ولايتونو كې د PRT مراكز هم دزندانيانو د ساتلو لپاره كارېدل او اوس هم ترډيره حده دهمدې اونورو بشرضد كارونو لپاره استعماليږي.

كره راپورونه او يو شمير راخلاص شوي بنديان وايي چې :امريكايي پوځيان له معلومو زندانونو څخه پرته نور پټ زندانونه هم لري، چې دژوند شرايط يې خورا سخت او وحشيانه دي، دهمدې راپورونو په اساس امريكايان په خپلو سمندري اډو، او په ختيځه اروپا او خليج كې په خپلو قرارگاوو كې هم پټ زندانونه لري، چې له نړيوالو بشري سازمانونو څخه پټ ساتل شوي دي، خو دامريكا دمعلومو زندانونو له جملې ترټولو مشهور زندان دگوانتانامو زندان دى، چې دكيوبا په جنوب شرقي څنډه كې دگوانتانانامو په جزيره كې جوړشوى دى، دازندان په په افغانستان دامريكايي يرغل په لومړيو كې د ۲۰۰۱ لومړي كال په پاى كې په ياده جزيره كې دديره امريكايي سمندري ځواكونو لخوا تاسيس شو، چې وروسته دافغانستان دجگړې اسيران ورانتقال شول، او يو دنړۍ له خبر جوړونكو زندانونو څخه شو.

په كابل كې دكرزي دحكومت له ټينگښت سره حكومت هم پخواني زندانونه له سره فعال كړل اونوي زندانونه يې هم جوړكړل، او يوځل بيا يې دافغان اولس له بچيانو ډک كړل، په ۱/۲/۱۳۸۲ه ش نيټه

حامد کرزي دیوه فرمان په صادرولو سره دزندانونو عمومي ریاست چې په داخله وزارت پورې تړلی و، دمحابسو او توقیف خانو دعمومي ریاست په نامه په عدلیې وزارت پورې وتاړه، په دې سربیره یې دهیواد په لراوبر کې دزندانونو دتوسیع لپاره په کار پیل وکړ، دکرزي دادارې دعدلیې وزارت دراپور له مخې دامریکا پرمختیایي اداري USAID په لومړني کومک کې دمحابسو له ریاست سره دزندان جوړولو لپاره د پنځه ملیونه ډالرو مرسته وکړه، دغه راز NDS موسسې او نورو مرستندویانو هم په دې برخه کې همکاري وکړه چې په دې توګه دوی وتوانیدل چې دافغانستان په سطحه ۳۵ زندانونه، او ۳۵۲ توقیف خانې له سره فعالې او ګټه اخیستنې ! !ته چمتو کړي.

په دې لړ کې دپل چرخي زندان چې دکابل په ختیځ کې پروت دی هم له سره په اساسي ډول جوړ شو، ددې زندان هغه برخه چې پخوا دکورنیو چارو وزارت مربوط وه عدلیې وزارت ته وسپارل شوه، او کومه برخه یې چې ددفاع وزارت مربوط وه، هغه امریکایانو ته په واک کې ورکړل شوه، امریکایانو دا برخه له سره ورغوله او دګوانتانامو او باګرام دزندانیانو لپاره یې یونوی محبس په کې جوړ کړ چې چارې یې دامریکایانو لخوا کنترولیږي، دعدلیې وزارت دچارواکوله قوله ددې وزارت په مربوط محبس ۵۲۰۰ تنه زنداني دي، په پل چرخي سربیره دافغانستان دازاد اولس په وړاندې په ټولو ولایاتو او ولسوالیو کې هم نوي زندانونه دحبس او تعذیب دیوې نوې مرحلې دپیل په نیت فعال شول.

# د اشغال په لس کلنه دوره کې زندانونه او په کې ترسره شوي جنايات

وړاندې وويل شول چې په افغانستان دامريکايي يرغل له پيل سره يوځای يو ځل بيا دزنداني کولو بهير پيل شو، امريکايانو او کينول شويو ګوډاګيانو يې دافغانستان په بيلابيلو سيمو کې دخپلو زنداني مخالفينو دساتلو لپاره دهيواد په مختلفو سيمو کې ګڼ زندانونه فعال کړل، په دې لړ کې څو مهم زندانونه چې دامريکايانو په ولکه کې وو، دباګرام ستربدنام زندان، دکندهار د هوايي ډګر تور زندان او دخوست په سارا باغ امريکايي مرکز کې امريکايي وحشي زندان ديادولو وړ دي، له دې پرته په مختلفو سيمو کې امريکايانو تقريبا په خپلو ټولو قرارګاوو کې مؤقتې توقيف خانې او زندانونه درلودل خو مشهور يې همدا ياد شوي دي.

په ټوله کې ويلی شو چې په دې موده کې دامريکايانو په لاس دزنداني کيدونکو، دنيولو طريقه او په زندان کې دساتلو او تحقيقاتو وضعيت خورا بوږنوونکی و، امريکايانو په خورا وحشيانه ډول خلک نيول، او بيا يې خورا له زورزياتي ډک چلند ورسره کاوه، دکابل ولايت اوسيدونکی مولوي عبدالبصير چې امريکايانو په هماغو اوائلو کې نيولی، خپل دنيول کيدو په اړه وايي.

(دامريکايانو ديرغل په اوائلو کې دروژې مياشت وه، ما دکابل په موسهي کې له خپلې سپين سرې مور نه اجازه او خدای پاماني واخيسته او له کور څخه دقرانکريم دترجمې او تفسير او زدکړې په نيت

د طالبۍ په سفر ووتم، غوښتل مې له کابل څخه پکتیکا داورګون له لارې، جنوبي وزیرستان ته لاړ شم او هلته د مولوي نورمحمد په مشهوره مدرسه کې سبق ووایم، کله چې د انګور اډې سیمې ته ورسیدم، ګورم چې امریکایان او داخلي داړه ماران یې په لویه لار کې ولاړ دي او خلک ځاري، زما چې د ملایي لباس او سپینه مسنونه پګړۍ په سر وه، نو عسکرو له لرې څخه ځارلم کله چې ورلنډ شوم، نو یوه افغان عسکر غږ وکړ چې ( طالب دی ) په همدې غږ سره نورو عسکرو رابانديې رامنډې کړې، او د ټوپکو په کونداغو یې ګوزارونه راباندې پیل کړل، ما ناري کړې ولې مې وهئ !زه د مدرسې طالب یم، سبق ته روان یم، خو هیچا زما خبرې ته غوږ نه نیو په همدې کې یې پړمخي چپه کړم، او یوه عسکر په سر سر د سوکانو ګوزارونه رابانديې پیل کړل، نه پوهیږم دا عسکر کراټه باز و، که څنګه خو سوکونه یې داسې رابانديې لګیدل لکه په ډبرو مې چې په سر سر وهي، بالاخره یې لاسونه هم ډیر ټینګ ترشا راوتړل، خو وهل ټکول لا روان وو، زما مخ ځمکې ته و، او له پوزې او خولې مې وینې روانې وې، په دې وخت کې امریکایي عسکر هم راورسیدل، افغان عسکر ته یې څه وویل چې هغه وهل بند کړل، مګر کله چې امریکایي عسکر لاړل، بیا یې په وهلو پیل وکړ، وروسته امریکایان بیا راغلل، یوه غټ امریکایي یوه خړه کڅوړه راپرسر کړه، وروسته یې له ځمکې راپورته کړم، په بغل کې یې واخیستم او نږدې چې کوم ټانک ولاړ وهغه ته یې وروغورځولم، ټانک حرکت وکړ او څه وخت وروسته بیرته ودرېد ، په دې وخت کې یې له ټانک څخه راکښته کړم او په یوه ژوره کوټه کې یې واچولم، دوه درې ساعته په دې کوټه کې همداسې بې حاله پروت وم، چې امریکایان په چیغو او نارو راغلل، راپورته یې کړم په انګلیسي یې په زوره زوره څه راته ویل خو زه پرې نه پوهیدم، یوبل

اطاق ته يې بوتلم چې ميز او څوكۍ په كې وې، هلته سترګې راخلاصې او په يوه چوكۍ كينول شوم، او ديوه افغان ژباړن په توسط تحقيق راڅخه پيل شو، اول يې دنوم او ادرس پوښتنه وكړه او بيا يې دا پوښتنه وكړه چې طالب يې كه القاعده ؟ما وويل زه دمدرسې شاګرد يم، او همدا اوس مدرسې ته روان وم، خو محقق او ترجمان به بيا بيا پوښتنه تكراروله او غوسه يې كوله، چې څوځله يې ماپوښتنه ځواب نه كړه نو ترجمان په دروازه كې ولاړ امريكايي عسكر ته چې ګوته په ماشه ولاړ و اشاره وكړه او ماته يې وويل چې كه داپوښتنه داځل ځواب نه كړي هغه عسكر ته امر كوو چې ودې وژني، ماورته وويل الحمدلله ډيره دخوشالۍ خبره ده شهيد به شم، له دې تحقيق نه وروسته بيرته كڅوړه راپرسر شوه او هماغې تل خونې ته راوستل شوم، دا وخت دماسپښين لمونځ ناوخته و، ما دلمانځه لپاره ډيره غوښتنه وكړه، خو اجازه رانكړل شوه، او ترماخوستنه پورې مې ديوه لمانځه فرصت هم پيدا نكړ، ځكه همدا سې زولانه وم او امريكايي عسكرو مې غوښتنه نه اوريدله .... )

داتنها ديوه زنداني دنيول كيدو دلومړنيو مراحلو كيسه ده، حقيقت دادى چې هربندي كيدونكى كس په همداسي وحشي ډول دامريكايانو لخوا نيول كيدو او دزندان هره مرحله يې همداسې له ظلمه ډكه او بوږنوونكې وه، دغه راز په كندهار، بګرام او نورو سيمو كې هغه ځايونه چې امريكايانو دغه بنديان په كې ساتل، دژوند شرايط يې خورا سخت وو، بنديان ديخنۍ او ګرمۍ له لاسه له سختو ستونزو سره مخامخ وه، د ژوند لپاره له اوليه ضرورتونو هم محروم ول، د بدرفت كوم سالم سيستم او ترتيب يې نه درلود، خوراک يې كافي او سم نه و، داودس، ضروري غسل او عبادت لپاره ازادي نه وركول كيده، بنديان له جسمي او روحي ناروغيو كړيدل، اوله دې ټولو ستونزو سره سره

دامريکايي پوځيانو، مستنطقينو، او پلټونکو له خورا وحشيانه چلند سره مخامخ ول، چې هيڅ پای او انتها يې نه درلوده، دبګرام او کندهار له اضطراري زندانونو وروسته امريکايانو دافغان جګړې دزندانيانو دساتنې لپاره يوه بله بنديخانه جوړه کړه، چې ښايي دزندانونو په تاريخ کې ترټولو خبرساز زندان وي، هغه چې له امريکايي بشردوستۍ څخه يې په ښه توګه پرده پورته کړه او تر ابده به دامريکايي تاريخ په تندې د توردااغ په حيث پاته وي.

## دګوانتانامو زندان

ګوانتانامو دلاتيني امريکا د کيوبا هيواد په جنوب شرقي برخه کې ديوې جزيرې او خليج نوم دی، چې له اوس نه ډېر وړاندې په ۱۹۰۳ ميلادي کال کې دامهمه جزيره ديوه قرداد له مخې دکيوبا لخوا دامريکا متحده اېالاتو ته په اجاره ورکړل شوې ده، اوس په دې سيمه کې امريکايي سمندري سرتيري مهم مراکز لري، په افغانستان له امريکايي بريد وروسته امريکايانو په همدې جزيره کې دافغان جګړې دزندانيانو دساتلو لپاره يو زندان جوړ کړ، چې تراوسه پورې يوشمير زندانيان په کې ساتل کيږي.

سره له دې چې امريکايي پوځ او استخبارات دنړۍ په بيلابيلو برخو کې خورا ډېر پټ او ښکاره زندانونه لري، چې په دې لړ کې په سمندري اډو او دامريکا په نورو مستعمرو کې پټ زندانونه ديادولو وړ دي، خو ګوانتانامو زندان هغه ځه و، چې امريکايانو په ښکاره دخپلو دښمنانو دويرولو او رواني جنګ لپاره جوړ کړی و، چې له همدې امله يې له بنديانو سره خورا سخت چلند کيده.

دګوانتانامو دزندان په اړه امريکايانو په صراحت سره ويل چې دغه زندان هيڅ قانون او دستور نه لري، دوی دليل وايه څنګه چې دا زندان دامريکا له خاورې بهر دی او دبل کوم قانوني حکومت ترسلطه لاندې هم نه دی، نوځکه په کې هيڅ قانون نه چليږي، دغه راز امريکايانو ددې زندان قيدي خلک زندانيان يا مظنونين نه بلل بلکې متخاصم دښمنان يې ورته ويل، او په دې توګه په نړيوالو بشري کنوانسيونونو کې دبنديانو لپاره تثبيت شوي حقوق هم په څرګنده ترپښو لاندې کول او دزندانيانو لپاره يې هيڅ بشري حق په رسميت نه پيژاند .

د ګوانتانامو زندان ته انتقال چې دالوتکې ۲۲ ساعته مزل دی، هم خورا په وحشتناکه بڼه و ، چې بنديان په خورا سخت حالت کې په کلکو چوکيو پورې په نيمه ناست شکل تړل کيدل او بيا د هيڅ حرکت، خوراک، خوب او نورو ضرورياتو اجازه نه ورکول کيده، په زندان کې دبنديانو داوسيدو ځای هغه قفسونه دي، چې يوازې دوه متره طول او يونيم متر عرض لري، دبندي خوراک، څښاک، خوب، سپورت، عبادت او هرڅه په همدې کمه محوطه کې ترسره کيږي .

دا زندان چې په سلګونو افغانانو او د نورو نړۍ مسلمانانو يې تکليفونه ګاللي دي، تراوسه دبشر په تاريخ کې ترټولو مشهور او وحشت ناک زندان پيژندل شوی دی، په زندان کې دتحقيقاتو او پلټنو وضعيت خورا دردونکی بلل شوی، بنديان حکايت کوي، چې ډير سخت تعذيبونه او شکنجې ورکول شوي دي، دبيلګې په توګه، په تل خونو کې کوټه قلفي، دماشينونو په واسطه په ګرمو شويو يا يخو شويو اطاقونوکې ساتل، په لوږه او تنده کې ساتل، جعلي خطونه جوړول، په بيا بيا جزايي کول، په بنديانو مسخرې وهل، برقي شارټونه ورکول، دسپيو په واسطه داړل، جامې وباسل او لوڅ عکسونه اخيستل، په هوا

کې راځوړند کول، او د (واټر بورډ ينګ )سزا ورکول، واټر بورډينګ د سزا هغه ډول دی، چې اوسنيو امريکايانو ته له پخوانيو صليبيانو څخه په ميراث پاته ده، دا سزا له اوس څخه څو پيړۍ وړاندې په اوسنۍ هسپانيه او پخواني اندلس کې دزورواکو صليبيانو داحتساب دادارې لخوا دمغلوبو مسلمانانو په وړاندې کاريدله، ترڅويې له خپل دين څخه واوړي، ددې سزا په مهال بندي ستوني ستغ څملول کيږي، په خوله او پوزې باندې يوه لوند نرم ټوکر وراچول کيږي، او بيا له پاسه اوبه پرې ورپريښودل کيږي، کله چې بندي تنفس اخلي نو دپوزې او خولې لارې يې ټوکر هم له ساه سرې تيريږي، تردې چې دا لوند ټوکر يې دتنفس لاره په بشپړه توګه بنده کړي، په دې مهال بندي په خورا تکليف په څو دقيقو کې يوځل سا اخيستلای او بيرته وباسلی شي، چې په دې توګه بندي مړ کيږي هم نه او په سخت تکليف او نفس تنګۍ باندې مبتلا وي.

هغه عکسونه چې دګوانتانامو دمظالمو په اړه نشر شوي دي، په نړيواله کچه دوحشت له اړخه بيساري بلل شوي دي، په عکسونو کې په څرګنده ليدل کيږي چې امريکايان له بنديانو سره خورا ناوړه چلند کوي، ددې زندان دزندانيانو په وينا په زندان کې ډير انفرادي زندانونه او دمهمو زندانيانو دساتلو ځايونه موجود دي، چې په کې دترسره شويو جنايـاتو پـه اړه يـې ډيـر معلومـا ت نشـته، پـه دې زنـدان کـې څـو ځلـه دامريکـايي شـکنجو او مظـالمو پـه تـرڅ کـې زنـدانيان پـه شـهادت هـم ورسيدل، ياسر، مانع، علي عبدالله، ابو طلحه، معلم اول ګل، مولوي عنايت الله او داسې نور هغه زندانيان دي چې دامريکايي مظالمو په نتيجه کې يې ساه ورکړې، ددې زندان دبد وضعيت او امريکايي مظالمو په اړه که په تفصيل ليکل کوو ښايي کتابونه پرې ډک شي، لکه همدا اوس چې ددې زندان په ترخو واقعاتو څو کتابونه ليکل شوي او

لاهم په نړيوال کچه ليکل کيږي، دګوانتانامو انځور، ماتې زولنې، له حجرې ترپنجرې، دګوانتانامو زندان او داسې نور هغه کتابونه دي چې ددې زندان په اړه ليکل شوي دي، خو لاهم په نړيوال کچه ددې زندان په اړه حقايق رابرسيره کيدونکي دي، او ډير څه به پرې وليکل شي.

دګوانتانامو زندان چې امريکايانو دخپلو مخالفينو دويرولو په هدف جوړ کړی و، په پای کې يې معکوسه نتيجه ورکړه، ددې زندان جناياتو له يوې خوا دافغانستان او نړۍ په کچه دامريکايانو په خلاف سخت نفرت او کرکه راوپاروله له بلې خوايي امريکايي بشريت پالنه هم تر نه جبيره کيدونکي حده رسوا او شرمنده کړه، په پايله کې دزندان دوضعيت په اړه په نړيوال کچه مظاهرې پيل شوې، تردې چې ددې زندان دتړلو لپاره دامريکا دفلوريدا ايالت په ميامي کې هم ديوډله بشري فعالينو لخوا چې ټولو دکيوبا دزندانيانو په شان سرې جامې اغوستي وې درنده مظاهره وشوه، دهمدې فشارونو په پايله کې باراک اوباما په ۲۰۰۹ کال کې اعلان وکړ، چې دا زندان به وتړي، مګر اوس هم دازندان فعال دی، خو دزندانيانو شمير يې بيخي کم شوی او تقريبا دوه نيم سوه زندانيان په کې داسارت شپې تيروي.

## دبګرام زندان

بګرام دکابل په شمال کې دامريکايانو ترټولو ستره او مهمه اډه ده، په دې اډه کې امريکايانو يو ستر زندان هم ودان کړی، چې تقريبا دګوانتانامو زندان ته ورته دی، دازندان چې په پرله پسې توګه په اصطلاح نوبتي شکل پکې ترزروډيرافغانان دوحشت شپې تيروي، په

لومړيو کلونو کې يې وضعيت تراټکل پورته وحشتناک و ، دلته هم دتحقيقاتو او نور تعاملاتو په برخه کې له بنديانو سره امريکايي چلند کټ مټ دګوانتانامو غوندې دی ، دلته هم دتور زندان په نامه يو پټ زندان شتون لري ، چې خاص بنديان په کې اچول کيږي او دژوند شرايط يې خورا سخت دي ، په دې وروستيو کې دسره صليب دکميټې لخوا ددې زندان دوضعيت په اړه يو راپور نشر شوی ، چې دبګرام دزندان وضعيت يې له ګوانتانامو څخه بد بللی ، دباګرام زندان چې هميشه زر(۱۰۰۰) تنه زندانيان په کې ساتل کيږي ، په بيا بيا دشکنجو ، قتل او تعذيب خبرونه ترې راوتلي دي ، په ۲۰۰۵ کال کې ددې زندان يوشمير زندانيان په ناڅاپي توګه نادرکه شول چې تراوسه يې درک نه دی لګيدلی او نه يې امريکايي چارواکو په اړه مطبوعاتو ته څه ويلي دي ، غالب ګومان دادی چې داکسان به دامريکايانو لخوا په شهادت رسول شوي وي .

دبګرام زندان هم عين دګوانتانامو غوندې له هر ډول بشري قانون دپلي کولو څخه لوړ ! ! دی ، بنديان له خپلو کورنيو سره دملاقات فرصت نلري په دې وروستيو کې له ډيرو نړيوالو اعتراضو وروسته امريکايانو بنديانو ته فرصت ورکړی چې له خپلو قريبانو سره دانټرنيټ له لارې ملاقات وکړي ، دغه راز په دې زندان کې محاکمه کيدونکي بنديان دازادانه دعوا چلولو او وکيل نيولو ، اختيار هم نلري ، هغه نمايشي محکمې چې دلته دبنديانو لپاره دائريږي وکالت ، او قضا او هرڅه يې تحميلي بڼه لري چې زنداني يې بايد په پټو سترګو ومني .

په دې وروستيو کې دبګرام زندان نوم دامريکايانو لخوا په پروان زندان تبديل شوی او داسې ويل کيږي چې نور به هم پراخ شي .

# دپل چرخي زندان

پل چرخي زندان دکابل په ختیځه سیمه کې موقعیت لري، چې دافغانستان ترټولو ستر زندان دی، ددې زندان دجوړښت چارې په په ۱۳۵۰ لمریز کې پیل شوې چې دڅلورکلونو په ترځ کې پای ته ورسیدې، دازندان په حلقوي شکل جوړشوی چې، ګڼ بلاکونه لري، چې بیا دبلاکونو په منځ کې سالونونه او اطاقونه موجود دي، سره له دې چې دا زندان دقانون له مخې یوازې د ۲۰۰۰ تنه بندیانو دساتنې ظرفیت لري، خو دکمونیستي دور غونډې دکرزي په حکومت کې هم په دې زندان کې دخپل ظرفیت څخه څو برابره زیات بندیان اچول شوي دي، دزندان زیاتره حصې دکابل دچاروا کو په ولکه کې دي، چې په زرګونو بندیان په کې ساتل کیږي، دغه راز یې ځینې بلاکونه دخارجیانو لخوا کنترولیږي، چې هغوی دګوانتانامو او باګرام څخه راانتقالیدونکي بندیان په کې ساتي.

دکمونیستي دورې غونډې داوسني مزدور رژیم په دوره کې هم دازندان دخورا ترخو خاطرو او واقعیتونو شاهد پاته شوی دی، ددې زندان بندیان وایي چې په تیرو څو کلونو کې په بیا بیا له سختو ستونزو سره مخامخ شوي دي، په ګڼو ستونزو سربیره یوه اساسي ستونزه دبندیانو د دوسیو اوسرنوشت نه څیړل دي، دې زندان ته چې یوځل څوک ورداخل شي، بیا که په خپله دمختلفو لارو څخه دخپل سرنوشت پوښتنه اودمحاکمې هڅه ونه کړي، نو امکان یې شته چې ترډیره وخته په زندان کې پاته شي، له همدې امله خوداسې کسان شته چې له تیرو لسو کلونو

راهيسې په دې زندان کې پراته دي، په داسې حال کې چې هيڅ جرم او ګناه يې معلومه نه ده.

په دې سربيره له بنديانو سره دحکومتي چاروا کو ناسم چلند، دخوراک او حفظ الصحې دسيستم ناسموالی، مجاهد بنديان دنور ومجرمو اشخاصو په واسطه ځورول او هغوی ورسره په يوځای کې اچول او نورې هغه ستونزې دي چې ددې زندان بنديان يې په بيا بيا اعتصابونو ته اړ کړي دي، چې ډير ځله خو بنديانو د لوږې داعتصابونو په مهال خپلې خولې هم ګنډلې دي.

د ۲۰۰۹ ميلادی کال په وروستۍ مياشت کې هم دپل چرخي په زندان کې بنديانو اعتصاب کړی و، داچې دوی ولې په اعتصاب مجبور شوي، هغه مهال يوه بندی الاماره ويب پاڼې ته د زندان دوضعيت په اړه داسې کيسه کړې وه.

(يونيم په درې متره کې اطاق دی داطاق دپاي خواته کموډ نصب دي دکموډ له بغل سره دوشۍ ولاړه ده داطاق مخ په او سپنيزو پنجرو پوښل شوي په هرداډول اطاق ياتشناب کې دوه دوه يادرې درې بنديان اچول شوي دي زماهم په دې ځاي کې شپږ مياشتې وتلې دي دځينو نورو کلونه پکې تيرشوي دي ددې بنديانو خوب خوراک لمونځ غسل او ټول ضروريات په همدې درې متري محدوده کې پوره کيږي او دضرورت لپاره دبهروتلو هيڅ فرصت هم نه ورکول کيږي اطاق سره له دې چې له لويه سره مشکلات لري خو زمونږ ژوند ځکه ډيرتريخ دي چې له کموډ سره ډيرپه تکليف يو کموډ زمونږ دناستې ځاي ته دومره نژدې دي چې کله زه اوزماملګري دخوب په مهال پښې غځوو نوورسره لګيږي ځنګه چې دااطاقونو دهمدې کموډوله وجې ډيرچټل شوي نوځکه ډيربنديان

ناروغه شوي هم دي چې تراوسه يې د سمې تداوي فرصت نه دي موندلي .دغه بلاک خصوصي بلاک بولي چې دنورو بلاکو په نسبت په کې لړ بنديان ساتل کيږي ويل کيږي چې په دې بلاک کې دروسانو په مهال مهم بنديان ساتل کيدل دغه راز دنيمو شپو اعدامونه هم په همدې ځاي کې ترسره کيدل ددې بلاک وحشي فضا اوپه ديوالونو اوغولي ځينې نښې نښانې هم دهمدې خبرې تصديق کوي په دې بلاک کې دهيواد دبيلابيلو سيمو اوپه بيلابيلوتورونو تورن کسان بنديان دي چې يوه زياته برخه يې دهيواد دجنوبي سيمو دي په دوي کې دتنکيو ځوانانو په شمول دپاخه عمرکسان هم شته دقران کريم حافظان، طالب العلمان اوحتي مدرس اوسپين ږيري عالمان هم په همدې تشنابو کې شپې اوورځې تيروي، دغه خلک چې ټول له درنو باعزته اوپه دين اووطن مينو کورنيو سره تړاو لري له ډيرې مودې راپديخوا په دې زړه دردونکي ماحول کې ژوندکوي چې تراوسه ترې افغانان او نورمسلمانان ناخبره پاته ول دوي چې دې ځاي ته راوړل شوي نودخپل جرم سزا اوقيد دمعلوميدو په تمه دي، مګر له څوکلونو تيريدوورو سته لا ډيري ملګري دمحکمې دترسره کيدولپاره نه دې ورغوښتل شوي دځينو يوه محکمه او دچادوه محکمې شوې اوبيايې ددوسيې غم نه دى خوړل شوي نوځکه همدا سې بې پوښتنې اوپلټنې پاته دي لنډه داچې زمونږ ژوند نورله دې وتلي وچې زغم يې ولرو نوځکه مو په اعتصاب او احتجاج لاس پورې کړ... )

په تيرو څو کلونو کې دپل چرخي په زندان کې ددښمن لخوا په انفرادي وژنو، ځورونو او شکنجو سربيره څو ځله عمومي قتلونه هم وشول چې ګڼ شمير بنديان په کې په شهادت ورسيدل، له دې جملې يوځل په ۲۰۰۴ ميلادی کال کې دښمن په زندانيانو بريد وکړ چې څلور تنه زندانيان يې شهيدان او ګڼ نور يې ټپيان کړل، چې بيا دزندانيانو په

متقابل بريد کې د دښمن څلورتنه پوليس هم ووژل شو، د ۱۳۸۴ کال دکب په ۷ مه نېټه هم دزندان په ځينو بلاکونو باندې دښمن هجوم وروور چې تر لسو ډير بنديان يې شهيدان کړل او ۳۲ تنه نور ټپيان شول، خو مطبوعاتو په دې بريد کې د شهيدو شويو زندانيانو شمير ۷ تنه ښود.

د ۱۳۸۷ کال دقوس ۱۴ نېټه په وروستيو کلونو کې د پل چرخي دزندان لپاره ترټولو کرغيړنه او بوږنوونکي ورځ وه، چې دې زندان ته يې يوځل بيا دکمونيستي مهال واقعات ورپه زړه کړل، په دې ورځ د دښمن لسګونو په وسلو، لاسي بمونو او زهري ګازونو سمبالو عسکرو دزندان په څو بلاکونو هجوم وروړ، او دبنديانو په ويشتلو، وهلو او لوټولو يې پيل وکړ، په دې ناځوانمردانه بريد کې ۳۲ تنه بنديان چې دهيواد دمختلفو سيمو اوسيدونکي وو په شهادت ورسيدل، او ګڼ شمير نور ټپيان شول، داپيښه يو خورا ښکاره جنايت و چې د مظلومو زندانيانو په وړاندې ترسره شو، خو دبشر دحقوقو دعوه ګيرو نړيوالو ادارو پرې هيڅ غبرګون هم ښکاره نه کړ، د دې پيښې په وړاندې اسلامي امارت سخت غبرګون وښود اوله دښمن څخه يې دانتقام اخيستلو، هوډ څرګند کړ، چې بالاخره دهمدې کال د سلواغې دمياشتې په ۲۳ درويشتمه نېټه په ټولو اړونده مراجعو ( عدليه وزارت او محابسو رياست ) باندې مؤثر فدايي عمليات ترسره شول چې دښمن ته په کې خورا درانه تلفات واوښتل.

د پل چرخي په زندان کې بل دياد وني وړ جنايت تېر کال دبنديانو دډله ايز اعدام هغه جريان و چې دروژې په مبارکه مياشت کې پيل شو، دکره شواهدو له مخې د دې جنايت په مهال لسګونه تنه افغان بنديان دکرزي په رسمي غوښتنه اعدام شول، چې د دښمن دا عمل د اسلامي امارت لخوا په سختو ټکو تقبيح شو.

د پل چرخي په زندان کې که په تیرو لسو کلنو کې ټول ترسره شوي جنایات راسپړو اود بندیانو حکایات رانقلوو نسایي مطلب ډیر دراز شي، خو دلته به یوه شیبه دبندیانو هغه مشکلاتو ته غور وکړو چې د دې زندان بندیان همدا اوس ورسره لاس او ګریوان دي، د دې زندان یو تن بندي خپل مشکلات داسې راشمیري.

۱= موږ یو شمیر ملګري چې مخکي په مرکزي زندان کي په تشنابو کي اچول شوي وو اوس یې دګوانتانامو بلاک ته راوستلي یو مګر دلته هم هغه ظلم جریان لري، له هغه راپدیخوا موږ ټول چې یونیم سل کسه کیږو په کوټه قلفي کي ساتي.

۲= لـه خوب څخـه مو بې وختـه او بې ضرورته راوینښوي چه اوس مو اعصاب خراب شویدي.

۳= دپای وازي لپاره څوک نه را پریږدي که راهم شي نو ورتـه وایـي ځئ ځئ تاسي خو طالبان یاست دپا یوازې په ځای کې یې ښځې اونران یو ځای کښینولي وي.

۴= یوشمیرملګري یې پرتـه لـه محکمې اوسپیناوي بیرتـه راڅخـه باګرام تـه یووړل.

۵= دعفوې له فرمانونو څخه یې مستثنی کړي یو.

۷= موږته تخفیف نه راکوي او په خپلو دوسیو مو نه خبروي چه موږ کوم جرم کړئ دئ.

۸= لـه موږسره پـه دې ظالمانـه چلنـد نـه طالبـان خبـردي نـه پارلمـان نـه بشرحقوقو والا اونه بل څوک.

۹= زموږ ږغ نه اوريدل کيږي کله چې يو هيئت راځي نو زموږ په نمايندګي يا جاسوسان ورولاړوي يا هغه بنديان چي اعصاب يې له لاسه ورکړي وي.

۱۰= ډوډۍ موډيره لږده نه سره راکوي نه توده، کالي نه راپريږدي تشناب کاغذ نه راکوي دغه راز قچي، وغيره ضروري اسباب نه خپله راکوي او نه يې چې موږ راوغواړو راپريږدی، له همدې امله دملګرو دسرو او بريتو ويښتان ډير زيات غټ شوي دي.

۱۱= داختر په شپو کې يې دځينو ملګرو بريتو نو دتوهين په دود په زور وروخريل.

۱۲= دبنديانو دسپکاوی په دود يې تک سره کالي ورکړي، چې دماشومانو غوندې يې کشکونه په کې اچولي.

۱۳= کړکۍ يې راپسي ويلډنګ کړيدي توري هنداري يې په کې لګولې دي نه رڼا وينو او نه هم لمر چه دې وضعيت دسر، سترګو، اعصابو مريضۍ راپيدا کړي، دعلاج او دوايي بندوبست هم نشته.

۱۴= په موږ کي داسي بنديان شته چه اوس يې اته کاله پوره کيږي خوسرنوشت يې ندئ معلوم.

۱۵= زموږ دمحبس مشر دشمالي ټلوالې سړی دئ چه جنرال واسع نوميږي اوله موږ سره ډيره دښمني پالي اوشخصي تضادراسره لري.

نو که داسي حال وي بيا به اعتصاب کوو نورخه مو په وس کي نشته يادي يو داسي هيئت راشي چه زموږ حالات په خپلو سترګوله نژدې وګوري.

په تېرو کرښو کې د ګوانتانامو، باګرام او پل چرخي دزندانونو ځينې واقعات دنمونې په توګه ياد شول، که بيرته خپلې عنوان شوې موضوع ته راشو په تيرو لسوکلونو کې امريکايي يرغلګرو او کورنيو اجيرانو يې په خپلو بنديخانو او توقيف ځايونو کې سخت مظالم ترسره

کړي دی، چې په وخت يې په اړه نړيوالو خبري رسنيو مستند راپورونه، ويډيوګانې او تصويرونه نشر کړي دي، په يادو زندانونو سربيره دافغان بنديانو په وړاندې بل ترټولو خطرناک ځای دکابل درژيم دملي امنيت داداري زندانونه دي، چې اوس هم پخواني کمونيسي خاديان پکې فعال دی، او مؤمنو بنديانو ته خورا سختې شکنجې ورکوي، دکابل دملي امنيت دکارکوونکو په اړه ويل کيږي چې دکرزي درژيم دبلې هرې اداري په نسبت ډير بې رحمه او عقده لرونکي دي، دوی دسزاګانو له هغو ډولونو څخه کار اخلي چې عموما نه استعماليږي، دبيلګې په توګه ويل کيږي، چې دبنديانو تناسلي آلو ته برقي شارټونه ورکوي او په همدې ناحيو کې سخت ګوزارونه ورکول کيږي، چې له دې څخه دکابل دواکمنو پست مزاجي او نامردي ډيره ښه څرګنديدلای شي.

## له زندانيانو سره امريکايي چلند دبشري حقوقو د نړيوالو تړونونو په هنداره کې

امريکا او يوشمير نور غربي حکومتونه دزياترو هيوادونو په کورنيو چارو کې د مداخلې لپاره دبشري حقوقو له وضعيت څخه ديوې بهانې په توګه استفاده کوي، دوی هغه وضعي قوانين چې دملګرو ملتونو او يوشمير نورو تحت الحمايه ادارو په توسط يې دبشري حقوق درعايت لپاره ترتيب کړي، دځمکې په سر ترټولو معتبر اسناد بولي، چې نړيوال يې بايد ورسره ومني.

خو دتعجب ځای دادی چې امريکايان او نورلويديځوال خپله هم په عملي ميدان کې په دې قوانينو او تړونو باندې عمل نه کوي، او نه يې ځان په عملي ډګر کې په رعايت مکلف بولي، دلته به دبيلګې په توګه

دزندانيانو دوضعيت په اړه دملګرو ملتونو لخوا دځينو وضعه شويو قوانينو ځيني مواد راواخلو او بيا به وګورو چې لويديځوالو په خپلو دې ترتيب کړو قوانينو باندې څومره عمل کړی دی.

د ۱۹۸۸ کال په دسامبر کي دملګرو ملتونو د مجمع عمومي لخوا تصويب شوې، دبنديانو دحمايت قطعنامه داسې وايي.

**۶ اصل** : هيڅ څوک په هيڅ ډول زندان کې بايد شکنجه نه شي، او نه بايد بې رحمانه، غيرانساني او توهين آميزه سزا ورکړل شي، هيڅ قسم شواهد او شرايط نه شي کولای دزندانيانو شکنجه ياغيرانساني او توهين آميز مجازات توجيه کړي.

**۱۶ اصل** : له نيول کيدو وروسته بندي بايد دا حق ولري، چې سمدستي، خپل دکورنۍ غړي او دوستان، له خپل نيول کيدو څخه خبر کړي، دغه راز له يوه زندان يا محل څخه بل ته دانتقال څخه يې هم خبر کړي، ترڅو هغوی ورسره لازمه همکاري وکړای شي.

**۱۷ اصل** : فرد له نيول کيدو وروسته بايد سمدستي وروسته داحق ولري چې په خپل زړه ځان ته مدافع وکيل ونيسي، ترڅو په قانوني چوکاټ کې دنوموړي له حق څخه دفاع وکړي.

**۱۸ اصل** : نيول شوی فرد بايد دزندان په مهال له خپل قانوني وکيل سره هميشه دليدلو، ملاقات او مشورې مجال ولري، او ددې لپاره بايد کافي وخت ورکړل شي.

**۲۱ اصل** : نيول شوی فرد په زور په اعتراف کولو، يا دبل چا په ضد په شاهدي ورکولو نه شي مجبوريدلی، بندي بايد دپوښتنو ګرويږنو په مهال له تهديد او خشونت سره مخامخ نه شي.

دملګرو ملتونو لخوا دبنديانو دوضعيت په اړه ترتيب شوي دا قانون ۳۹ اصول لري، چې په ټولو کې يې ددغو يادو شو مادو په شکل همداسې ( ګل خبرې ) کړي دي او بنديانو ته يې خورا ډير حقوق ټاکلي دي، په دې سربيره دملګرو ملتونو لخوا په ۱۹۸۴ کال په تصويب شوی يو بل قانون کې چې ( دشکنجې ضد کنوانسيون ) ورته وايي، هم دبنديانو شکنجه، هتک حرمت، اعدام او وهل ټکول په کلکه منع شويدي، خو لکه څنګه چې ښکاري دغه قوانين دلويديځو يرغلګرو په تيره دامريکا په قاموس کې يوازې دکاغذ دمخ کرښې بلل کيږي، څکه په عملي ډګر کي ورته هيڅ اعتناء نه کوي.

موږ له تيرو لسوکلونو راهيسې وينو، چې امريکايانو په زرګونو بې ګناه افغانان په غيرموجهه توګه زندانانو ته اچولي، اعدام کړي يې دي، سختې شکنجې او تعذيبونه يې ورکړي، روحي او جسمي سزاګانې يې ورکړې، او په جبر او اکراه سره يې په اعترافونو مجبور کړي دي.

دمدافع وکيل حق چې دملګرو ملتونو کنوانسيون پرې بيا بيا ژبه ټکوي، امريکايان يې په رسميت نه پيژني، دوی دنمايشي محکمې غوندې بنديانو ته هم په خپله خوښه يو نمايشي مدافع وکيل نيسي او بيا يې چې څنګه خوشه وي هماغسې حکم پرې کوي.

دامريکا په بندي خانو کې پراته بنديان دا حق نلري چې دخپلې کورنۍ له غړو او دوستانو سره مخامخ ليده کاته وکړي، يا يې له نيول کيدو وروسته له خپل وضعيت څخه خبر کړي، دو ی په دې وروستيو کې بنديانو ته يوازې دومره حق ورکړی چې دخپلې کورنۍ له غړو سره دانټرنټ په مټ ملاقات کولای شي هغه هم دبندي ترنيول کيدو څو مياشتي ياکلونه وروسته.

دملګـرو ملتونـو او دبشـر دحقوقـو دنـورو نړيوالـو ادارو لخـوا دتصويب شويو قطعنامو لوړې څو مـادې ددې لپـاره راوړل شـوې، ترڅو يې لوستونکي وګوري او بيا يې دبنديانو پـه اړه دامريکايـانو لـه عملي چلند سره پرتله کړي، چې لـه دې څخـه پـه اسانه معلوميدلای شي چې لويديځوال په تيره امريکايان دبشردحقوقو په اړه په خپله دعوا او شعار کې څومره دروغجن دي، دوی پـه دې اړه خورا ډيرې قطعنـامې امضـاء کړي دي، جـايزې يې ټـاکلي دي، او پـه مطبوعـاتو کې پـرې ډيـر ټينګـار کوي، خو په عملي ميدان کې دهرچا په پرتله دوی ډير دبشـر پـه وړانـدې جنايتکاران او دحقوقو تلف کوونکي دي.

## دزندانيانو په اړه داسلامي امارت چلند او پاليسي

دبنديان په وړاندې داسلامي امارت چال چلند او مقرره پاليسـي، پـه ټوله کې لـه هغـه څـه څخـه مشـتمله ده چې اسلامي ارشادات يې لارښـوونه کوي، په دې اړه په همدې کتاب کې يومستقله ليکنه شـته، چې دزندانيانو اساسي حقوق او ورسره دچلند څرنګوالی په کې روښانه شوی دی.

داسلامي لارښوونو پـه رڼا کې زندان دتعذيب او زور زيـاتی ځـای نـه بلکې دټولنې داخلاقي مجرمو اشخاصو داصلاح اوتربيت ځای بلل کيږي، داسلامي امارت دواکمنۍ په دوران کې دزندانونو وضعيت تقريبـا تربيتـي مدرسو تـه ورتـه و، او بنـدي اشخاصـو تـه دينـي او حرفـوی زده کـړې ورکـول کيدلې، ددې ترڅنګ ديوشمير بې لارې ماشومانو اونويوځوانانولپاره چې دټولنې داذيت سبب کيدل، دارالتأديبونه جوړ شوي وو.

اوس هم اسلامي امارت دمجاهدينو لپاره په ترتيب شوي کاري لائحه کې مجاهدين په دې مأمور کړي دي، چې له زندانيانو سره پوره اخلاقي چلند وکړي، اوله شرعي فيصلي پرته هيڅ ډول تعذيب او شکنجې ورنه کړي، دمجاهدينو دکاري لائحې ۱۵ مه ماده په دې اړوند داسې صراحت لري.

۱۵ - څوک چې له مجاهدينو سره اسيرشي نومجاهدين دې په لوږه، تنده، يخ اوګرمۍ سره عذاب نه ورکوي که څه هم دمرګ مستحق وي بلکې هرډول شرعي فيصله چې باندې شوې وي دهغې مطابق به تعزيرورکوي هغه که وژل وي اويا بله سزا.

دغه راز دا اسلامي امت دهغو بندي زامنو په اړه چې ددښمن په بنديخانو کې زندانيان دي، هم اسلامي امارت بې تفاوته نه دی پاتـه شوی، د بندي مجاهدينو دراخلاصولو او ورسره دملاتړ لپاره اسلامي امارت په خپلو تشکيلاتو کې يو ځانګړی کميسيون جوړ کړی، چې په بيلابيلو برخو کې دبنديانو دازادۍ او حق ورکولو لپاره کار کوي، په دې سربيره اسلامي امارت په بيا بيا له مختلفو لارو او وسائلو څخه په استفاده هڅه کړي ده چې دافغان مجاهد اولس بندي زامن ددښمن له منګولو څخه راخلاص کړي، دهمدې لپاره دهيواد په بيلابيلو برخو کې په زندانونو باندې بريدونه شوي، او بنديانو ته دنجات اسباب برابر شوي دی، په دې لړکې درې ځله دکندهار د مرکزي محبس ټولو زندانيانو ته دځانګړو عملياتو له لارې نجات ورکول، دغه راز د ۱۳۸۹ لمريز کال د سرطان په ۲۷ دفراه ولايت دمرکزي زندان ماتول او تر ۳۰ ډير زندانيان ازادول او د ۱۳۸۸ د سرطان په ۲۳ دزابل ولايت دمرکزي زندان دلسګونو بنديانو ازادي چې دا اسلامي امارت دمجاهدينو دخاصو عملياتو په پايله کې انجام شوه، ديادولو وړ دي.

# دوهـــم فـصـــل

## په وروستيو لسو کلونو کې په هيواد کې دزندان ماتولو پيښې

پـه وروسـتيو لسـو کلونـو کـې دهيـواد پـه بيلابيلـو ولايتونـو کـې زنداني مجاهدين په دې توانيدلي چې ددښمن له محبسونو څخه دنجات لاره ومومي، په دې لړ کې دبنديانو دنجات دانفرادي پيښې خورا ډيرې دي، خوځو ځلـه داسې هم شـوي دي چې مجاهد بنـديان دزنـدانونو پـه ماتولو توانيـدلي وي، او پـه ډلـه ايـزه توګـه ټولـو تـه دنجـات لاره برابـره شوې وي.

پـه تيرو څو کلونو کې درې ځله دکندهار دسرپوزې، محبس، دوه ځلـه دفـراه ولايـت مرکـزي محـبس او يـو ځـل دزابـل مرکـزي محـبس دمجاهدينو لخوا مـات شوي دي، او ګڼو زندانيانو تـه يې دنجـات لاره خلاصـه شـوې ده، داچـې مجاهـدين څنګـه او لـه کومـو وسـائلو او تاکتيکونو څخه په استفاده وتوانيدل چې دوه ځله دفراه ولايت مرکزي محبس مات کړي، دلته يې ځکه يادونه نه کوو، چې پـه دې مـواردو کـې دمجاهدينو تاکتيکونه خورا حيرانوونکي وو، چې تراوسه محرم ساتل شوي او دښمن هم پرې نه دی خبر شوی او مجاهدين کولای شي، پـه بيـا بيـا يې استعمال کړي، امـا د زابـل ولايت دمرکزي محبس دماتېدو او دکندهار د سرپوزې دمحبس دماتيدو دپيښو پـه اړه به يو لړ معلومات او مطالب درته وړاندې کړو.

## دزابل دمرکزي زندان څخه دبندیانو خلاصون

دزابل ولایت په مرکزي محبس کې چې ګڼ شمیر بندیان اوسیدل، د ۱۳۸۸ هـ ش کال دسرطان په ۲۳ نیټه دشپې مهال یو شمیر مجاهدینو دځانګړي پلان له مخې یو لړ عملیات ترسره کړل، او خپلو ډیرو ملګرو ته یې له زندان څخه دوتلو زمینه برابره کړه، ددې پیښې دنورو جزیاتو په اړه مو دهمدې عملیاتو دبرخوالو مجاهدینو له جملې له یوه سره شوې مرکې ته پام راګرځوو، چې دالاماره ویب پاڼې لخوا هغه مهال ورسره شوې وه.

## دکلات زندان دماتېدو په اړه دیوه زنداني مجاهد دسترګو لیدلی حال

دالاماره ویب سایټ درنومینه والو دمطبوعاتوله لارې به خبر شوي یاست چې دزابل ولایت دقلات په ښارکې زنداني مجاهدینو دتیرکال په ثیریوځل بیا دخپلوفولادي ارادواوهمتونونمونه وړاندې کړه دقلات مرکزي زندان چې تر ۳۵ پورې مجاهدین پکې اسیران وو دهمدغومجاهدینودهمت به برکت مات شواوټول مجاهدین ترې راووتل چې اوس الحمدلله ټول په عافیت سره خپلومحفوظوسیموته رسیدلی دي.

دهمدې راخلاصوشویومجاهدینوله جملې څخه موله یوه سره مرکه کړې چې ستاسوپام ورته راګرځوو.

پوښتنه: ګرانه وروره لومړې دخپلې دې تاریخي بریااوازدۍ مبارکي درته وایواوبیاکه زمونږلوستوالوته ځان وروپیژنئ!؟

ځواب: زمانوم ملامحمدنعیم دی دزابل ولایت اوسیدونکی یم اوله څوکلونوپه همدې ولایت کې دجهادپه مقدسه وظیفه بوخت وم نژدې اوه میاشتې وړاندې مې دخپلوجهادي فعالیتوپه لړکې د قلات ښارپه یوبرخه کې په څوتنوموټرسایکل سپرواستخباراتي چارواکود

بريد نيت لاره خود بريد په مهال مې توپانچې كارپريښود نوځكه دد ښمن له خواژوندى ونيول شوم او داتيرې اوه مياشتې دزابل په لوى زندان كې قيدي وم او دوو محكمو په لس كاله قيد محكوم كړى وم.

پوښتنه:كه د قلات دزندان دماتېدو د واقعې په باره كې راته كيسه وكړئ څنګه وتوانيدى چې زندان مات كړئ؟

ځواب.كيسه داسې وه هلته په محبس كې په مجاهدينوډيرزيات ظلم كيده مونږداسې پروګرام جوړكړچې په هرقيمت وي له دې زندانه به ځان خلاصوو اګركه شهيدان هم شو داپلان مو په سيمه كې له مجاهدينو سره هم شريک كړچې كله موږووزوچې دوى بايدزمونږمخې ته درهنمايي اوساتنې لپاره اماده وي همداسې و شول مونږپه محبس كې پنځو تنو ملګرويو مازديګرمشوره سره وكړه چې سباسهارچې پيردارد ويښولو لپاره راځي حمله به پرې كوواونورچې هرڅه پيښ شول .همداووچې سهارپاوكم څلوربجې وې چې موظف سړى چې دمحبس دقومندان وراره دى زمونږدراويښولو لپاره راغى كله چې بيرته ووت پدې وخت كې مونږ حمله پرې وكړه اوله مرى نه مو ونيويوڅوناري يې وكړې اوبيا خپه اوبې هوشه شو په همدې وخت كې مونږله همدې دراوزې راووتواونوروبنديانو ته ورغلوددوونوروكوټوچې طالبان پكې بنديان وو دهغوقلفونه مومات كړل اوملګري راووتل مونږڅوملګري دهمدې پيرداراطاق ته ورغلوكه څه وسله په لاس راغله خوهلته هيڅ هم نه وه اوبيا د زندان انګړته راووتلو خودباندې مولارنلرله نوځكه مودپيردار دكوټې كړكې ماتې كړې اويوه بل سراى ته ورووتودلته يوه لويه محكمه دروازه وه له همدې سره موهم زور وواهه اوبلاخره موله بيخه وايسته پدې وخت كې دشاوخواپوستو پوليسو هم ټكان (ډزي )شروع كړل خوزمونږملګري اكثره راوتلي وو دلته لاندې رود دى

مونږ په همدې خوا راغلو خوزمونږ له بهره راغلي نورمجاهدين ملګري دمحبس لمرخاته خواته دزړې شفاخانې سره اودلويديځ په خوادزړې قومندانۍ خواته مونږته انتظاروو مونږ له خپلوملګروسره له يوځای کيدووروسته راده ته ولويدوخودرود په دواړوغاړودعسکروپوستې وې مونږدهمدې پوستو ترمابين راووتلو له پوستونه يو يوټک کيده خوزمونږملګري بې خاره روان وو چې له څه مزله وروسته دسيوري ولسوالۍ په خوا دمجاهدينوعلاقې ته ورسيدو چې لله الحمدلله دمجاهدينوپه سيمه کې يوا وهيڅ مشکل نشته.

پوښتنه: ددې محبس دموقعيت په باره کې که معلومات راکړئ چې شاوخوايې امنيتي پوستې شته اوکه نه ؟

ځواب: محبس دقلات ښارجنوب ته دی چې داعلاقه هواشناسي بولی دلمرخاته خواته يې په نيم کيلومترکې دامريکايانوغټ مرکزيا پي آرټي ده شمال خواته يې لوی عسکری غونډدی چې دملي اردوقرارګاه په کې پرته ده دغه راز يې شاوخوادامنيه قومندانۍ په شمول ډيرې امنيتي پوستې هم دي خومجاهدين الحمدلله دالله تعالی په نصرت وتوانيدل چې له دې ټولوپوستوراتيرشي اوخوندي سيموته ځان ورسوي.

پوښتنه: په محبس کې څوتنه بنديان وو، ولې نيول شوی وو اوڅوتنه به راخلاص شوي وي ؟

ځواب: په محبس کې به بنديان نورډيروه خو ۳۵ تنه طالبان وو چې په داتيروڅوکلونوکې په جهادکې اسيران شوي وو په دوی کې په چالس په چا ان پنځلس اوشل کاله قيدختلی وو ځينوڅلوريا پنځه کاله همدلته تيرکړي وو زمادمعلومات له مخې دغه ۳۵ تنه ټول راخلاص شويدي اوڅوک ندي نيول شوي ځکه هلته ماليدل چې ټول راووتل.

پوښتنه: دغه پنځه شپږملګري چې په عسکر يې حمله وکړه د دوي نومونه درته ياددي ؟ ځواب: هوله ما نه پرته نورملګري لکه: ملاعبدالله، ملا عبد الولي، ملا روزي محمد اخند او ملا محمدنبي وو. .

## د سرپوزې زندان د ماتېدو پيښې ته کتنه

د سرپوزې زندان چې دکندهار په لويديځ کې موقعيت لري، دافغانستان له مشهورو زندانونو څخه شميرل کيږي، دازندان چې دسردار داود خان دواکمنۍ په مهال په پراخه ساحه کې جوړ شوی دی، په جنوب لويديځ زون کې ترټولو ستر زندان دی، په تيرو څوکلونو کې چې په دې زندان کې په بيا بيا ګڼ شمير مجاهدين زندانيان شول، تراوسه پورې دری ځله مجاهدين توانيدلي دي چې دازندان مات کړي، او ټولو زندانيانو ته نجات ورکړي.

په لومړي ځل دکندهاز زندان د ۲۰۰۳ کال دجون په مياشت کې مات شو، هغه مهال په دې زندان کې دبنديانو شمير ډېر نه و او يوازې ۴۵ تنه په کې اسيران وو، دکندهار اوسيدونکی ملامحمد نسيم چې هغه مهال له زندان څخه راخلاص شوی دی، دزندان ماتولو کيسه داسې بيانوي.

هغه مهال موږګڼ مجاهدين دکندهار دسرپوزې په محبس کې بنديان ووچې شمير مو تقريبا ۴۵ تنو ته رسيده، کله چې دمزدور دولت دواکمنۍ په لومړيو کې حامد کرزی کندهار ته په سفر راغی، نو دخرقې شريفې سره نږدې دعبدالرحمن په نامه يوه تن په کرزي باندې دکلاشينکوف ضربه وکړه، چې کرزی ترې بچ شو، خو دغه عبدالرحمن نامی وروسته په شهادت ورسول شو، ددغه عبدالرحمن ځينې انډيوالان چې له نوموړی سره دهمکارۍ شک پرې

کیده، له موږ وړاندې نیول شوي، او د کندهار د سرپوزې محبس ته راوستل شوي وو، هغوی نه پوهیږم څنګه یو (کولنګ) له ځانه سره راتیر کړی و، او ښایي هڅه به یې کوله چې له دې زندان څخه تونل ووهي، مګر مخکې له دې چې خپل کار پیل کړي، له دې ځایه کابل ته انتقال شول، کله چې موږ محبس ته راغلو، نو دغه کولنک مو پیدا کړ چې دیوه اطاق په غولي کې پټ کړای شوی و، کله چې مو پیدا کړ نو هوډ مو وکړ چې د سوري په وهلو کار پیل کړو، خو دلته مشکل دا و چې د دې تونل خاوره به چیرته اچوو، دلته نو په زندان کې یو خالي اطاق و، چې کله ناکله به ملګرو مجلس په کې کاوه، موږ د زندان عسکرو ته وویل چې دا اطاق هسې خالي ولاړ دی، او ملګري په کې هسې مجلس او بنډار کوي، هسې نه دا اطاق هیندارو، دروازو یا نورو ځایونو ته زیان پیښ کړي، داسې به وکړو چې دا زندان ته به قلف وروا چوو، عسکرو ته زموږ خبرې خوند ورکړ، او همدا اطاق مو قلف کړ، مګر د دې اطاق یوه کړکۍ وه، او کله چې مو له یوې کوټې څخه تونل وهل پیل کړل، نو خاورې به مو په څادرونو کې راوړې او له دې کړکۍ څخه به مو همدې خالي اطاق ته ورغورځولې.

په دې تونل کې په همدې یوه کولنګ باندې څو ورځې کار وشو، چې ترلسو ورځو پورې ورسیده، او ملګرو به په نوبت کار کاوه، او نور ملګري به په دعاګانو او تلاوتونو لګیا وو ترڅو دا هڅې رسوا نشي او کامیابي ته ورسیږي، دلته نو تونل یوه پاخه دیوال ته ورسیده، او موږ ګومان کاوه چې اخري دیوال ته مو ورساوه، کله مو چې تر دیوال لاندې تیر کړ، او وروسته مو پورته سوری کړ، نو د زندان په مابین کې راسوری شو، دلته معلومه شوه، چې د زندان د جوړیدو په مهال په ځمکې کې پټ یوه پوخ دیوال تیر شوی ترڅو زندانیان تونل ونه وهي، له دې غلطۍ وروسته مو بیرته د دغه سوري خوله په بوټو وربنده کړه، او کارته مو ادامه ورکړه، ترڅو له ډیر تکلیف

وروسته په ۱۲ مه ورځ مو اخري ديوال ته ورساوه، کله چې اخري ديوال ته ورسيده، نو په همدې شپه دبنديانو ايستل پيل شول، په پيل کې ضعيف او زخمي بنديان وايستل شول، او په دې توګه ټول بنديان په بريا سره ووتل او نجات يې پيدا کړ.

په دوهم ځل دکندهار زندان د ۲۰۰۸ کال دجون په ۱۴ شپه دمجاهدينو په يوه منظم بريد کې دړې وړې شو، او تقريبا ټول بنديان يې چې شمير يې ۱۲۰۰ ته رسيده راخوشې شول، ددې عملياتو په مهال لومړى د شپې په نهه نيمې بجې مجاهدينو دزندان په مرکزي دروازه دټانکر په واسطه دموټر بم بريد ترسره کړ، چې دزندان دوداني يوه برخه او دوازه يې ونړوله، وروسته مجاهدينودزندان په حفاظتي پوستو تعرضي عمليات پيل کړل او په يوه شيبه کې يې ددښمن ټول سرتيري چې شمير يې لسګونو ته رسيده ووژل، او مجاهدين زندان ته په داخليدو وتوانيل، زندان ته له داخليدو وروسته مجاهدينو بنديان ازاد کړل، او سيمې ته د راوستل شويو موټرونو په واسطه اوځيني يې پلي دژړۍ اوپنجوايي ولسواليو او شاوخوانورو سيمو ته انتقال کړل، دابريد چې خورا ډير بنديان په کې را ازاد شول دمجاهدينو يوه نمونه يي بريا وبلل شو، او ددښمن په روحياتو يې خورا بد اثر وکړ.

دکندهار دزندان دريم ځل ماتېدل چې په نړيواله توګه هيښونکى رويداد وبلل شو، د روان ۲۰۱۱ ميلادي کال داپريل په **۲۵** و، داځل مجاهدينو له خورا هيښوونکي تاکتيک او عملياتو څخه کار واخيست، چې په پايله کې يې د سرپوزې له زندان څخه دټولو **۵۴۱** بنديانو په خلاصون واتوانيدل، داچې داپيښې څنګه رامنځته شوه، ماهيت يې څه و، څه عواقب يې درلودل، او په اړه يې څه غبرګونونه وښودل شول په راتلونکو مطالبو کې به يې ولولئ.

**دکندهار زندان دماتېدو دپیښې په اړه دالاماره ویب پاڼې لومړنی بشپړ خبر چې په نړیواله میډیا کې یې ستره مطبوعاتي هنګامه جوړه کړه**

# دکندهار مرکزي زندان مات، ۵۴۱ مجاهدین ازاد شول

دروان میلادی کال داپریل **۲۵** شپه دافغانستان داسلامي امارت مجاهدین دلوی څښتن تعالی په نصرت په دې وتوانیدل ترڅو دکندهارزندان مات او **۵۴۱** تنه زنداني مجاهدین چې ۱۰۲ تنه یې قومندانان وو ازاد کاندي، دپیښې بشپړ جریان په دې ډول دی. کندهار محبس دهیواد په سطحه ددښمن مشهور او خورا ستر محبس دی، دامحبس مختلفې څانګي لري، چې مهمې یې دجنایي او سیاسي بندیانو څانګي دي، چې مجاهدین بندیان ټول ددې محبس په سیاسي څانګه کې ساتل کیدل، حاضردمه ددې محبس په سیاسي څانګه کې مجموعا **۵۴۱** تنه مجاهدین بندیان وو، دافغانستان داسلامي امارت تر سرپرستۍ لاندې دکندهار مجاهدینو دتیرو کامیابو عملیاتو په تعقیب څه موده وړاندې یوځل بیا داسې پلان جوړ کړ ترڅو په دې محبس کې زنداني مجاهدین ازاد کاندي.

دمجاهدینو له پلان سره سم، پنځه میاشتې وړاندې دمحبس د جنوب خوا له **۳۲۰** مترۍ څخه مجاهدینو ترځمکه لاندې په یوه تونل کارشروع کړ، مجاهدینو په خورا ځیراکت، راز ساتنې او مسلکي ډول خپل کار ته ادامه ورکړه، مجاهدینو خپل داتونل په تیرو څومیاشتو کې **۳۲۰** متره وغځاوه چې په دې توګه ددښمن ترامنیتي پوستو او دکندهار هرات دلویې لارې څخه لاندې تیر شو او مخامخ دکندهار محبس سیاسي څانګې ته ورغی. په وروستیو کې چې ددې تونل کار پای ته

رسيدلی و ، مجاهدينو په خوندي توگه دټولو بنديانو درايستلو لپاره خپل پلان له سره تجديد کړ ، په داسې ډول چې د پلان دکاميابي لپاره دمحبس په شاوخوا سيمه کې دفدايي مجاهدينو يوگروپ هم بايد شتون ولري ، ترڅو دخلاصون دعملياتو په مهال ددښمن داحتمالي عکس العمل په وړاندې په تهاجمي عملياتو لاس پورې کړي.

له پروگرام سره سم تيره شپه يوولس بجې له محبس څخه دبنديانو دايستلو کار پيل شو ، څرنگه چې دمحبس دننه دمجاهدينو له جملې يوازې دری تنه ددې پلان څخه خبر وو نو هغوی به هرې کوټې ته ورتلل ويده بنديان به يې په نوبت راويښول او بيا به يې دتونل په خوا رهبري کول، په دې توگه دټولو کوټو دبنديانو دايستلو کار پيل شو دشپې تقريبا دری نيمې بجې وې چې له محبس څخه وروستی بندي مجاهد هم را ويستل شو چې په دې توگه دمحبس جنوب ته په خوندي ډول ووتل وروسته دمجاهدينو دپلان سره سم دمجاهدينو دانتقال لپاره همدې سيمې ته موټرراوستل شول اوټول مجاهدين په پوره اطمنان خوندي سيموته انتقال کړای شول.ديادونې وړ ده چې په دې بنديانو کې دزخميانو ، ناروغانو او ډيرو ضعيفو بنديانو په شمول ټول بنديان را ايستل شوي دي، او دزندان په سياسی برخه کې هيڅ زنداني هم نه ده پريښودل شوی.

ددې عملياتو برخوال مجاهدين وايي چې عمليات خورا بريالی انجام شول، تردې چې دښمن هيڅ خبر نه شو او نه يې غبرگون وښود له همدې امله دمجاهدينو دفدايانو منتظره قطعه هم پرته له عملياتو له سيمې ووتل.

ددې پيښې ترټولو جالب اړخ داو چې دا عمليات دشپې په ۳ نيمی بجې پای ته ورسيدل خو دښمن دلمرختو په مهال هم لا له پيښې خبر نه و ، سيميز خلک او دصحنې څارونکي مجاهدين وايې چې له عملياتو څلور ساعته وروسته هم دمحبس په شاوخوا کې ددښمن کوم داسې تحرک نه ښکاري چې له پيښې ددوی خبرداری ترې وفهميږي.

بايد وويل شي چې په سيمه کې په داخلې دښمنانو سربيره دبهرنيانو هم ګڼ شمير ځواکونه، قرارګاوې، او امينتي کامرې فعالي دي، خو له عملياتو څو ساعته وروسته هم ددښمن ټول ځواکونه په دې نه دی توانيدلی چې دترسره شو يو عملياتو ماهيت درک کړي.

له الاماره ويب پاڼې نه په مننه

# دزنــدان د مـاتېدو کيــسه

## ( تصور څنګه په حقيقت بدل شو )

ليکوال: عبدالرؤف حکمت

## د کنــدهــار زنـــدان

د کندهار مرکزي محبس د کندهار ښار لويديځ پلو ته د سرپوزې په سيمه کې د کندهار ـ هرات دلويې لارې شمال ته متصلا پروت دی، دا دافغانستان په جنوب کې ترټول ستر حکومتي محبس دی، چې دزرګونو کسانو د ساتلو ظرفيت لري، محبس يوه مرکزي دروازه لري، په منځ کې يې متعدد د بلاکونو دي او په شاوخوا يې يومحکم لوړ ديوال راګرځيدلی دی.دا محبس خورا په اساسي ډول جوړ شوی دی، په څلورو کونجونو کې يې دترصد او څار لوړ برجونه ودان شوي، دغه راز يې په لويه چارديوالي سربيره ترځمکه لاندې هم څو پاخه ديوالونه ترې راچاپيره شوي ترڅو له زندان څخه بهر ته دتونل وهلو مخه ونيول شي.

خو له دې ټولو امنيتي ترتيباتو سره سره دازندان دافغانستان او نړۍ په سطحه يوه کيسه زيږونکې زندان هم وي، په تېرو اتو کلونو کې درې ځله ددې زندان په سياسي بلاک کې ټول بندي کسان په دې توانيدلي چې له زندان څخه د تيښتې لاره ومومي، لومړی ځل په ۲۰۰۳ کال دجون په مياشت کې ددې زندان له سياسي بلاک څخه بندي مجاهدين په دې وتوانيدل چې دزندان له دننه څخه تونل ووهي او ټولو بنديانو ته چې شمير يې ۴۵ تنو ته رسيده له تونل څخه دوتلو لاره هواره کړي، ورپسې د ۲۰۰۸ کال دجون په مياشت کې په دې زندان باندې داسلامي امارت مجاهدينو بريدوکړ چې په پايله کې يې دزندان ټول ساتونکي ووژل شول او نږدې ۱۲۰۰ بندي مجاهدين ازاد کړای شول، له دې پيښې وروسته دکندهار چارواکو او امريکايانو دزندان ساتلو ته توجه خورا ډيره کړه، کاناډايانو دزندان دساتنې لپاره ځانګړي پوليس وروزل، دغه راز يې دامنيتي برجونو شمير زيات کړ، دزندان په شاوخوا يې امنيتي کامرې ولګولې، او ګردچاپيره يې يوه ژور خندق ترې را تاوه کړ، خوله دې ټولو هڅو سره سره دروان ۲۰۱۱ ميلادي کال داپريل په ۲۵ مه مجاهدين ديوه اوږده پلان په نتيجه کې وتوانيدل له زندان څخه ۵۴۱ تنه زنداني مجاهدينو ته دراوتلو امکان برابر کړي.

## تـــصـــور محـــــض

دکندهار دښاري چريکي مجاهدينو له جملې يوه تن چې له خپلو اړيکو نه په استفاده يې دکندهار دمحبس په دننه او شاوخوا سيمه کې ځان ښه بلد کړی وه، يوه ورځ له ځان سره داسوچ وکړ چې آيا ممکنه نه ده چې دې زندان ته دسرک دبلې غاړې له يوه کور څخه تونل وايستل شي، او بنديانو ته دراوتلو امکان برابرکړي ؟؟ دا تصور په لومړيوکې خپله

همدې مجاهد ته هم خندوونکی ښکاريده او له چا سره دشريکولو زړه يي نه شواى کولاى، خو وروسته نوموړى په دې اړه پوره باوري شو، او يوه ورځ چې دکندهار په ښار کې له خپلو دوو نورو ملګرو سره په رکشا کې سپور و، له ملګرو سره يې خپل دا نظر شريک کړ، په لومړيو کې خپله دده غوندې يې نورو ملګرو ته هم دا له امکانه لرې بريښيده او يوه خطرناکه بې ځايه خواري يې بلله، خوبالاخره يې په لوى څښتن اتکاء وکړه، خپل دا پلان يي په کندهار کې داسلامي امارت دمجاهدينو له مشرتابه سره شريک کړ او دهغو دهدا ياتو په رڼا کې څلورو تنو سره همرازو ملګرو هوډ وښود چې که هر څو خطرناک او ناممکن بريښي دوى حاضر دى يوځل دا پلان تجربه کړي.

## دګـادر جـوړولـو کـارخـانه

دې هوډمنـو مجاهـدينو لـه اوس څخـه شـپږ مياشـتې وړانـدې لـومړى دکنـدهار محبس جنـوب لويـديځ کـونج تـه څيرمـه دعمـومي سـرک پـه بلـه غـاړه يـو کـور پـه کرايـه ونيـو، پـه کـور کـې پخـوانۍ کـوټې نړيـدلې وې نـو لـومړى يـې يـوه نـوې کوټـه پـه کـې جـوړه کـړه، دغـه رازيـې پـه کـور کـې دسيمټي ګـادرو دجوړولـو لپـاره ټـول لازم مـواد هـم رايوځـاى کـړل، څـو تنـه کـاريګر يـې هـم ورسـره ونيـول چـې دورځـې بـه يـې سـيمټي ګـادر جـوړول، او مـازديګر بـه بيرتـه دخپلـو کورونـو پـه خـوا تلـل، پـه همـدې وخـت کـې لـومړى څلـورو تنـو مجاهـدينو چـې پـه سـراى کـې دپيـره دارۍ پـه نامـه پاتـه کيـدل دسـراى لـه همـدې نـوې جـوړې شـوې کـوټې څخـه دزندان په خوا تونل شروع کړ.

# څلور مياشتې ستړې کوونکې کار

لومړی کار څلوروتنو پیل کړ، په داسې شکل چې یوه تن به کولنګ واهه اونورو به خاوره انتقالوله، دخاورې دنقل لپاره څنګه چې تونل تنګ او لاسي ريړۍ نه په کې چلیده، نوددې کارتنظیموونکو په بازار کې څودکوچنیانو دلوبو بایسکلونو راونیول، ارابې یې ترې وایستې او په همدې کوچنیو ارابو یې وړې وړې باډۍ نصب کړې، همدا کوچنۍ لاسي جوړې شوې ريړۍ دوی له خاورو ډکولې اوبیا یې دیوې رسۍ په واسطه دغاردخولې په خوا راښکلې، دلته دوی خاوره رایوځای کوله اوبیا به یې ولاړ موټر ته ورپورته کولو او سهار مهال چې کندهارښار ته له شاوخوا سیمو څخه دخرڅلاو لپاره له خاورې ډک موټر راځي دوی هم خپل دخاورو ډک موټر په هماغه حساب کې ښار ته داخلاوه او خاوره یې ترینه خرڅوله، دوی تردوو میاشتو پورې په څلورو کسانو کار کاوه او وروسته یې ملګري ۸ کړل، د اتو کسانو په وخت کې یې هره شپه نږدې ۴ متره کار کاوه، دوی چې خپل کار سل میترۍ ته ورساوه نو دنفس تنګۍ له ستونزې سره مخ شول، تردې چې د۱۵۰ مترۍ په مسافه کې یې نور هیڅ ددې توان نه درلود چې کار پرمخ بوزي، همدا مهال یې لومړی برقي بادپکې تجربه کړې، هغو نفس تنګي ختموله خو څنګه چې ژمی و، نو دهوا دسړوالي او سردردۍ مشکل یې جوړاوه، بیا دوی یوډول باد اچوونکي بنۍ جوړې کړې چې دغارله خولې څخه یې داخل ته دیوه پایپ په واسطه هوا رسوله چې دا دهوا دستونزې دحل لپاره ترټولو ښه لاره وه چې دبترۍ په چارج ارامې چلیدې او هیڅ ډول شور یې هم نه کاوه، دکار په مهال دوی ته دا اندیښنه پیدا شوه، څرنګه چې دزندان په داخل کې تونل دعسکرو دموټرو دلارې څخه لاندې تیریږي هسې نه چې هلته دموټر دفشار دراتلو په وجه تونل کیني، نودوی

يې بايد څومره ژور ووهي ترڅو دکيناستو احتمال يې کم شي، ددې تجربې لپاره دوی دهمدې سرای او عمومي سرک ترمابين په مسافه کې په دوه نيم متره ژور وهل شوي تونل باندې يوه دخاورې ډک موټر ودراوه او کله چې دې درانه موټر تونل ته تاوان ونه رساوه نو دوی ډاډمن شول چې ددښمن موټر يې هم نه شي کينولای، مګر بيا هم داحتياط لپاره دوی دسر په برابرتونل ښه ژور کړ او تختې يې ورلاندې کړې، دځلورو مياشتو په تيريدو سره ملګرو ۲۲۰ متره کار وکړ چې دامهال دتونل په مخکې يوه برمه ورته راغله، دوی دافکر کاوه چې دابه دزندان په مابين کې کومه برمه وي خوکله يې چې دزندان دمابين برمه دخپل يوه ملګري په واسطه وکتله دا هغه برمه نه وه، بلکې دوی ته معلومه شوه چې داله زندان څخه جنوب لور ته په کلي کې يوه برمه ده، په حقيقت کې تونل وهونکو چې کومه نقشه ورسره نه وه، ترځمکه لاندې يې لار ورکه کړې وه، دوی په ښې لاس دومره راګرځيدلي وو، چې ترعمومي سرک بيرته را اوښتي وو، او دلته نږدې يوه کلي ته يې ځان رسولی وو، دغه راز دوی پوه شول چې دزندان دنقشې له موندلو او ځمک پيژندونکو آلو څخه پرته دا کار نه شي کاميابيدلای.

## يوه نيمه مياشت اغيزمن کار

تونل وهونکو مجاهدينو چې ۱۲۰ متره اضافي کار يې کړی و، او لار يې غلطه کړې وه، داځل يې لومړی له انټرنيټ څخه دزندان نقشه را وايسته چې له مخې يې دوی دزندان موقعيت په سمه طريقه معلوم کړ ورسره دوی دهمدې نقشې او ځمکنۍ مساحت معلوموونکو آلو څخه په استفاده له سل مترۍ څخه بيا مخامخ تونل پيل کړ، دغه مهال څرنګه چې شپې دپخوا په پرتله وړې وې، نودوی کسان ډير کړل او شمير يې ۲۱ تنو ته ورساوه، څنګه چې په اوړي ځمکه ډير بخار نه لري نو دنفس

تنګۍ ستونزه هم د پخوا په پرتله کمه شوې وه، دا مهال نو دوی خورا اغیزمن کار وکړ، او د ۱۷۲ متره مسافې په وهلو سره يې دزندان داخل ته ځان ورساوه (بايد وويل شي چې دالاماره پاڼې په رسمي راپور کې چې دتونل اوږدوالی ۳۲۰ متره ښودل شوی و، هلته هغه څه باندې سل متره اضافي تونل چې په غلطۍ وهل شوی و هم ورسره شميرل شوی و، چې په هغه حساب دتونل اوږدوالی نږدې ۳۲۰ مترو ته رسيږي، خوله اضافي تونل پرته يې بيا اوږدوالی دقيقا ۲۲۲ متره کيږي دغه راز بايد وو ايو چې ددې تونل لوړوالی ۷۰ سانتي او عرض يې ۲۰ سانتي و)

دکندهار په محبس کې مجاهدين دوه ځايه بنديان وو، ډير مجاهدين چې شمير يې تقريبا ۵۳۰ نفرو ته رسيده دمحبس په سياسي بلاک کې بنديان وو، مګر يوشمير نور دمحبس په توقيف خانه کې هم بنديان وو، دتونل په مخکې لومړی توقيف خانه راغله، په توقيف خانه کې دهمدې تونل وهوونکو مجاهدينويو ارتباطي کس و، چې هغه به په يوه بهانه ځمکه ټکوله اولاندې به په کار بوختو ملګرو ته دادرک لګيده چې دوی مخکې دي، شاته دي او ياهم څنګ ته دي، خو بالاخره په همدې طريقه دوی وتوانيدل چې توقيف خانې ته تونل وربرابر کړي، اوبيايې دموقعيت دښه يقيني کولو لپاره په يوه مناسب فرصت له لاندې خوا څخه سيخ هم پورته وباسه، ترڅو پاسني ملګري ډاډ ورکړچې موقعيت سم دی بيا له دې ځايه سياسي بلاک ته درسيدو لپاره دپنځو ورځو په ترڅ کې دشمال په خوا ۲۳ متره نور کاروشو ترڅوتونل سياسي بلاک ته ورسيد، په سياسي بلاک کې دتونل کيندونکو دوه ارتباطي ملګري وو چې دواړه په ۷ نمبر اطاق کې وو، اودوی هم غوښتل چې تونل اووم نمبر اطاق ته ورسوي، دوی غوښتل چې دموقعيت ديقيني کولو لپاره دلته هم له تونل څخه پورته يوځل سيخ وباسي ترڅو بيا دسوري پرې کولو په مهال غلطي رانشي، دغه مهال نو دوی په دې

کې متردد وو چې تونل د شپږم اطاق په برابر دی که داووم، ددې لپاره چې د سیخ ایستلو په مهال ددې اطاقونو نور ملګري له دې پروګرام څخه خبر نه شي همدې دوو ملګرو یوه ورځ د ماښام له لمانځه وروسته د زندان په مسجد کې د قران کریم د ختم مراسم راوبلل، په دې ورځ چې ټول ملګري په مسجد کې په ختم بوخت وو، او اطاقونه ټول خالي وو، دغه دوه تنه ملګري له مسجد څخه راووتل یوه په شپږم اطاق کې ځار پیل کړ او بل په اووم کې دغه مهال چې لاندې له تونل څخه ملګرو سیخ ته زور ورکړ، نو ددوی د طمعې خلاف په شپږم اطاق کې سیخ راووت، له دې وروسته دوی دوه متره نور کار وکړ ترڅو داووم اطاق اندازې ته ورسیدل، مګر بیا هم د ښه یقین لپاره دوی ضروري بلله یو ځل له لاندې خوا څخه پورته سیخ وباسي، دلته نو له اطاق څخه د نورو ملګرو د ایستلو لپاره بیا ختم هم نه شوای جوړیدلای، نو د ځاښت په مهال کې چې زیاتره زندانیان د ځاښت د لمانځه او یا اودس تازه کولو لپاره بهر وزي، له یوه داسې څو دقیقه یې فرصت نه د سیخ د ایستلو لپاره استفاده وشوه چې په اووم نمبر اطاق کې له همدې ارتباطي ملګرو پرته بل څوک نه وپاته، چې په دې توګه سیخ په بریالیتوب داووم نمبر اطاق ته وایستل شو، او د خلاصون د عملیاتو په ورځ د سوري جوړولو لپاره ځای دقیق شو، باید ووایو چې ددې سیخ په ایستلو کې هم له یوه په زړه پورې حکمت څخه کار اخیستل شوی و، ځکه تونل دوه نیم متره لاندې دی، چې ایله ۷۰ سانتي لوړوالی لري، نو دومره اوږد سیخ څنګه په کې برابریږي ترڅو پورته وایستل شي، ددې لپاره مجاهدینو فولادي سیخونه نیم نیم متر پرې کړي وو، چې یو له بل سره په چوړیو بسته کیدل، کله به چې نیم متر د جبک په واسطه پورته په خاوره کې ننویستل شو، بیا به بل نیم متری ورسره بسته شو، او هغه ته به جبک ورکړل شو، دغه راز یې بیرته د را ایستلو لپاره هم یو داسې او سپنه ورته جوړه کړې وه، چې له هر نیم

متری سره په چوړيو بسته کيدله او بيا دلاندې خواته دځمکې په ګوزار سره سيخونه را ايستل کيدل.

## دبنديانو درايستلو پلان

مطلوب هدف ته دتونل له رسيدو وروسته، ددې کار مسؤلو ملګرو نور کار ودراوه، او داسلامي امارت له مشرتابه څخه يې دبنديانو درا ايستلو دپلان په اړه هدايات وغوښتل، په دې اړه دکندهار دمسؤلو مجاهدينو په شمول داسلامي امارت لوړپوړو چارواکو له يوبل سره په بيا بيا مشورې وکړې، ترڅو په خوندي توګه دبنديانو درايستلو عمليات انجام شي، ددې مشورو په پايله کې پلان داسې ترتيب شو، چې دتونل کيندونکو له جملې يوه تن نوښتګر مجاهد چې ددې تونل دوهلو نظريه يې پيشنهاد کړې وه، او دتونل کيندلو په مهال تر ۳۰۰ متره پورې دکولنک وهلو سخت کار تنها ده کړی و، نوموړی به دنجات دعمليا تو مشر وي، او دعمليا تو په مهال به له ضرورت سره سم بيړني تصاميم نيسي او مشرتابه ته به دجريان ژوندی حال ورکوي.

دغه راز پلان بايد تروروستي شيبې محرم وساتل شي، په زندان کې له ارتباطي ملګرو سره تماس جوړ شي، او هغه دې ته تيار شي چې دزندان په دننه کې له پلان سره سم دبنديانو د تنظيم او را ايستلو مسؤليت په غاړه واخلي، په دې توګه پلان نهايي شو او داجراء لپاره دعمليا تو نومول شوي مشر ته وسپارل شو.

## دخلاصون عمليات

دعملياتو دسم ترسره كيدولپاره، په احتياطي تدابيرو او مقدماتي كارونو له سره غور وشو، په تونل كې دنفس تنگۍ دستونزې دحل لپاره، يوه قوي هوا پمپوونكي بنۍ فعاله شوه، او هغه پايپ چې دتونل تربل سره غځيدلى و لس ځايه نور سورى شو ترڅو ټول تونل ته هوا وكړي، دغه راز په تونل كې ۴۵ بتۍ هم ولگول شوې ترڅو تونل رڼا كړي، داحتياط لپاره دفدايانو يوگروپ هم شاوخوا سيمي ته ورسول شو چې داحتمالي خطر په وخت كې په عملياتو لاس پورې كړي، دعملياتو مشر په دې خاطر چې عمليات خورا پيچلي او خطرناك وو او دافشاكيدو احتمال يې خورا قوي و، دخپلو يو ويشتو رازدارو ملگرو له جملې دعملياتو په ورځ يوازې پنځه تنه نور له ځان سره كړل چې ټول شپږ كيدل، ترڅو دعملياتو دناكامۍ په وخت ټول ملگري نه وي ضايع شوي.

دوى دورځې په نهه بجې دزندان په داخل كې خپل درى ارتباطي زندانيان چې يو په توقيف خانه او دوه په سياسي بلاك كې وو خبر كړل، چې را رواني شپې ته عمليات دي دوى بايد ورته اماده وي، دسياسي بلاك داووم اطاق ارتباطي كسانو په دې شپه ددې لپاره چې ملگري په خپل وخت اگاه او وتلو ته تيار كړاى شي، په خپل اطاق كې ميلمستيا جوړه كړه اودهراطاق يو يادوه كسان يې راوغوښتل، دعملياتو مشر ترتيب داسې جوړ كړ، چې دشپږو ملگرو له جملې به څلورتنه تونل ته داخليږي، دوه به دتوقيف خانې په سوري كار كوي او دوه دسياسي بلاك په سوري، او دوه نور به دتونل په بهرنۍ خوله كې ناست وي، څرنگه چې دوى په دې ورځ دلين ټيلفون هم دتونل مابين ته تير كړى و، نو په دې طريقه به دتونل په خوله كې ناست ملگري د داخلو شويو ملگرو او دزندان په داخل كې دملگرو ترمابين په ټيلفون معلومات تبادله كوي، چې اړوند كار يې كوم ځاى ته رسيدلى او څه بايد وكړي.

څلور ملګري له جېکونو او اوسپنيزو پايو سره تونل ته داخل شول او څه باندې لس بجې وې چې توقيف خانې او سياسي محبس ته په سوري ايستلو يې شروع وکړه، دجېک په واسطه دتوقيف خانې فرش زر مات شو او هلته بندي ملګري هم راووتل، څرنګه چې له دوی سره دوه تنه حکومتي عسکر هم بنديان و، دهغو له جملې يو دمجاهدينو له خوا دبې هوښې په درملو سره بې هوښه کړل شو او دوهم تن لاس تړلی ترتونل وايستل شو ترڅو غالمغال جوړ نه کړي، دسياسي محبس فرش خورا قوي جوړ شوی و، او ملګري ترډيره پرې بوخت وو، جېک به فرش پورته کړ، خوداسې معلوميده لکه دتونل چې هوا ايساره وي نوځکه پورته نه سوری کيده، خو بالاخره په بيا بيا هڅو سره وتوانيدل چې دافرش هم مات کړي، دسياسي بلاک داووم نمبر اطاق په غولي کې دښه ازاد سوري دپرې کولو نه وروسته لاندنيو ملګرو پاسنيو ارتباطيانو ته څلورميله توپانچې او څلور قبضې برچې ورکړې ترڅو په عملياتو کې کار ترې واخلي دغه راز يې دليني تيلفون دستګاه هم ددوی په واک کې ورکړه، ترڅو دتونل دبل سرله ملګرو سره په رابطه کې وواوسي، په دې توګه له زندان څخه دبنديانو راوتل پيل شول، تريوې نيمې بجې پورې تقريبا ۲۵۰ کسه بنديان راووتل، دلته دعملياتو تنظيموونکو دافکر وکړ چې که بنديان همداسې په بيړه راوزي کيدای شي، تردوو بجو پورې ټول زندان خالي شي، اوپلان داسې و چې بنديان بايد داسې مهال راوايستل شي چې بهر ډير انتظار ونکړي او زر رخصت شي، ځکه بهر ترسهار انتظار ډير خطرناک و، له يوې خوا بهر افشاکيدل او بل که خدای نخواسته ددښمن عسکرو زندان ته ورکتلي وای او يومخ خالي يې ليدلای وای نوبيا هم خبره افشا کيده، له همدې امله دبنديانو دراايستلو کار ترنيم ساعته پورې وځنډول شو، په دوه بجې بيا دملګرو

رایستل پیل شول او تر ۳ بجو پورې مکمل زندانیان را ویستل شول، باید ووایو چې درایستلو په وخت کې دتونل په دواړو سرونو کې بندیان تلاشي کیدل، په لوړ سرکې له دوی نه اضافي شیان لکه بکسونو، او نور منقوله شیان غورځول کیدل ځکه ددوی انتقال یې ځنډاوه، او کیدای شي ددوی دبیا نیول کیدو سبب ګرځیدلي وای، دغه راز له هرملګري څخه تردری زره زیاتې پیسې اخیستل کیدې او هغو ته ورکول کیدلې چې پیسې نه درلودې.

دبندیانو درایستلو په مهال دزندان په داخل کې هم نظم خورا برابر و، تعین شوي ملګري په نوبت هرې کوټې ته ورتلل بندیان یې راویښول او دتونل په خوایي رهبری کول، زندانیان چې څنګه له تونله راوتل نو په سرای کې په ولاړو موټرو کې کینول کیدل، باید وویل شي چې په هرموټرکې ۳۲ تنه بندیان ځای په ځای کیدل، کله چې ټول بندیان راووتل نو لس باندې دری بجې وې چې موټرو ته دروانیدو اجازه ورکړل شوه، موټر له سرای نه ووتل دغه راز یوشمیر بندیان په دیواله کې له یوه غار څخه دمحله جات په خوا مخ په جنوب هم ووتل، خو هغو ته هدایت داسې و، چې له څه مزله وروسته بیرته دکندهار ـ هرات عمومي سرک ته راپورته شي، او دلین په موټرو کې ځان له سیمې وباسي، باید وویل شي چې دبندیانو دانتقال لپاره دراوستل شویو موټرو له جملې دوو موټرو یوه یوه بله پېره هم وکړه، او چې دری نیم یا څه کم څلور بجې کیدلې دزندان په شاوخوا کې هیڅوک هم پاته نه وو.

باید وویل شي چې له زندانه بهر دمجاهدینو داحتیاط او هوښیارۍ برکت و، چې دښمن په جریان خبر او اګاه نه شو، کنه همدغه سرای دزندان دامنیتي برج نه یوازې شل متره فاصله لري، او دسرای

منځ له همدې برج څخه ښکاري، دغه راز د دښمن امنيتي کامره د همدې سراى دروازې ته مخامخ متوجه وه، خو ترپايه يې هيڅ هم کشف نه کړل.

## د عمـليــاتو مـصــارف

بايـد ووايـو چـې دې عمليـاتو هـيڅ ځـاني زيـان نـه درلـود او نـه دمجاهدينو يوه مرمۍ په کې مصرف شوې ده، دغه راز يې مالي زيانونه او مصارف هم ترهغه ډير کم وه چې اټکل يې کيږي، دعمليـاتو دمشـر پـه وينا پـه تيرو پنځه نيمو مياشتو کې ددوي ټول مصارف يـوازې نهـه لکـه افغـانيو تـه رسيږي، پـه دې کـې دسراى لـه کرايـې، دملګرو لـه خـوراک، دموټرو له کرايې او داسې نورو مصارفو نيولې هغه زيان شوي شيـان هـم شامل دي چې په وروستۍ ورځ په سراى کې پاتـه شـول، دعمليـاتو مشـر مجاهد ملګرى(چې ددې عملياتو دترسره کولو لپاره يې دګاډرو کارخانه جوړه کړې وه ) وايي چې په پنځه نيمو مياشتو کې مو سل سيمټي ګـاډر هم جوړ او خرڅ کړل چې ښه ګټه يې وکړه، دى وايي دعملياتو په پاى کې چې کلـه دوروسـتيو کسـانو پـه توګـه لـه سـيمې وتلـو او سـراى تـه مـو دوروسـتي ځـل لپـاره قلف اچـاوه، نوپـه تونـل کـې مـو **۴۵** بتـۍ، او هـوا توليدونکى بنۍ چالانې پرې ايښې وې، دغه راز مودګاډر جوړولـو لـس قالبونـه، د **۵۰** زرو افغـانيو فـولادي سـيخ، دوه جنراتورونـه، دوه لاسـي ګاډۍ، دوه جيکونه، او څو پيرې جغل هم پـرې ښـود، خولـه دې تـاريخي سراى څخه مو هغه ګټه ترلاسه او وايستله چې له دغو لږو مالي تاوانونه سره په هيڅ وجه هم دپرتلې وړ نه بلل کيږي.

پاى (له څرک مجلې نه په مننه )

## دکندهار محبس دماتيدلو په اړه داسلامي امارت درهبري شوراى اعلاميه

تيـره شـپه (۲۵/۴/۲۰۱۱ ) دمتعـال څښـتن جـل جلالـه پـه نصـرت اوفضـل، داسـلامي امـارت مجاهـدين پـه دې وتوانيـدل، ترڅـو ديـولړ برياليو تاکتيکي عملياتو په پايله کې، دکندهار ښار په محبس کې ټولو موجودو **۵۴۱** تنه زنداني مجاهدينو تـه نجـات ورکـړي. مـوږ ددې سترې جهادي بريا دپيرزوينې له امله دمتعال او ناصر خداى جل جلاله شکر ادا کوو او دغه لوى انعام يې په لايتناهي حمدونو لمانځو.

دغـه راز ددې سـترې فتحـې لـه املـه دافغانسـتان مجاهـد اولـس، دروان جهاد ټولو مجاهدينو، دبنديانو کورنيو او په مجموع کې درست اسلامي امت ته مبارکى وايو.

بايد ووايو چې دکندهارپه زندان باندې له تيرو دوو ځلو عملياتو وروسـته، اوس دښـمن دزنـدان سـاتلو تـه خـورا ډيـره توجـه اړولـې وه، دزندان پـه شـاوخوا کـې يـې دکورنيـو او بهرنيـو سـرتيرو پوسـتې جوړې کـړې وې، خندقونـه يـې ايسـتلي، سـمتې ديوالونـه يـې درولـي، امنيتـي کـامرې او نورڅـارونکي وسـائل يـې نصـب کـړي وو، خـو دحـق دلارې مجاهدينو يوځل بيا د نړۍ په سترا استعماري نظامي طاقت او پـه غـرب کې د هغه په روزل شويو او پالـل شـويو داخلي لاسپوڅوخپله تـاکتيکي بريا ثابته کړه. مجاهدينو پدې سره دامريکا د ترټولوستايل شوي جنرال پيټرايـوس هغـه درواغجنـې ادعـاوې هـم دړې وړې کـړې چـې ويـل يـې :((کندهار کې مو د طالبانو قوت مـات کـړى دى او ښـکاره نظـامي لاسـته راوړنې لرو ) ).رښتيا باطل شور او زوږ لري، خو ماهيت نلري.دکندهار د زندان ماتولو وښوده چې امريکا اوباطل انډيوالان يې يوازې په ډنډورو

او پوچو تبليغاتو پايي، خو بې بنسټه ډنډوري بيا د ذلت نه ډکې پايلې لري. ګران هيوادوال وينې چې دهيواد په سطحه، عمل او ابتکارتل د مجاهدينو په لاس کې دی.

همداراز، په نورو ولاياتو کې دمجاهدينو وروستنيو مؤثرو عملياتو، دامريکا د ولس او نړۍ د ولسونو په نظر کې، دامريکايي ځواکونود مشر جنرال ډيويډ پيټرايوس هغه کاذبانه موقف، بې اعتباره کړ چې وايي د افغانستان په سطحه يې ښې نظامي برياوې ترلاسه کړې دي. د خندا خبره ده چې د کندهار د زندان د ماتيدو نه يوه ورځ د مخه، د پنتاګون يوه مشر وويل چې:((په روان ۲۰۱۱ کال کې به طالبان بيخي له افغانسان څخه محو کړي، چې بيا به په هيواد کې موجود نه وي ! ! ) ). مونږ د پنتاګون دغو مشهورو درواغجنو ته يوازې دا وايو چې د مارجې او کندهارد عملياتو ناکامي، د کوړنګل او دپيچ ددرې نه د امريکايي عسکرو په شاتګ، د طالبانو د محو کيدو معنا لري او که ستاسې د شکست؟ ! د ګوډاګۍ اداري ددفاع وزير دفترته د مجاهدينو لاره موندل د چا برى ښيي؟ ستاسو په معاش خورو پوليسو ستاسو وژل دچا دبرلاسۍ ثبوت دی ؟تاسې ته اوس يوازې درواغ او په مظلومو ملکي افغانانو بمباري، د شنو فصلونو او باغونو تباه کول او له مظلوموافغانانو زندانونه ډکول درپاته دي؟ لاکن څه شو ستاسي د بشر حقوق او څه شوه ستاسې ديموکراسي؟ په هر ميدان کې پاته ياست.

داچې مجاهدين دځواک او مورال له اړخه دقوت په حال کې دي، او افغان مجاهد اولس يې ترشاه ولاړدی، دغه راز به ان شا الله دښمن له پرله پسې پوځي او سياسي شکستونو سره مخامخ کيږي، نړيوال اشغالګر او داخلي اجيران يې بايد نور له خپل سرزورې سياست څخه لاس واخلي اودافغانانو هيوادافغانانو ته پريږدي، له دې سره هم مهال

هغه لويديځ اولسونه چې حکومتونه يې دافغانستان په اشغال کې سهم لري بايد دافغانستان دروانو جرياناتو دقيق جاج واخلي او په افغانستان کې دفوځي وضعيت موازنه له سره وارزوي او په بنسټ يې خپل حکومتونه له بې هدفه او تاواني جګړې څخه راوګرځوي.

په ټوله کې بايد ووايو چې دکندهار دا وروستي عمليات دکندهار ښار دنورو عملياتو غوندې له هره اړخه خورا موفق عمليات و، الله تعالی دې هغو مجاهدينو ته چې ددې پروګرام په برياليتوب کې يې داخوميا شتې خواري کړې دي، اجر عظيم او نعم البدل ورنصيب کړي. الله تعالی دې په راتلونکي کې دداسې پيرزوينو په ذريعه په هيواد کې د واقعي اسلامي نظام راتګ يقيني کړي.

داسلامي امارت رهبري شوری

( له الاماره ويب پاڼې نه په مننه )

# دکندهار زندان له يوه تن ماتوونکي مجاهد سره دالاماره ويب پاڼې ځانګړې مرکه

مرکيال: عمران خليل

دالاماره ويب پاڼې درنو مينوالو موږ دمرکو او راپور تاژونو په لړ کې مو دا ځل دکندهار زندان دماتيدو او د۵۴۱ تنو مجاهدينو دراخلاصيدو دتاريخي او له وياړه ډکې کارنامې دمعلوماتو په اړه دزندان دماتيدو دپلان جوړونکو له جملې نه له يوه تن مجاهد سره مرکه

کړې، مرکه کوونکی مجاهد چې دا کاریې په پوره اخلاص ترسره کړی نه غواړي چې نوم یې واخیستل شي او یا تشهیر شي نوځکه یې دده له غوښتنې سره سم له مستعار نامه اخیستلو هم تیریږو ..بسم الله الرحمن الرحیم

ډیر قدرمن او محترم مجاهد ورور ترهرڅه مخکې دکندهار دزندان دماتیدو او دمجاهدینو دازادیدلو او ددې سترې فتحې مبارکې تاسو او ټولو مجاهدینو ته وایو الله تبارک وتعالی دې دظالمانو په منګولوکې نور پاته مجاهدین هم په خپل فضل اوکرم ازاد کړي.

محترم ! که په پیل کې راته ووایاست چې دکندهارزندان دماتیدو او دزندان منځ ته دتونل کیندلو پلان مو په اول سر کې څرنګه جوړ او دې ستر او له زحمتونو ډک کار ته مو ملا څرنګه وتړله که په دې اړه معلومات راسره ګډ کړئ؟

جواب: نحمده ونصلي علی رسوله الکریم

امابعد فاعوذبالله من الشطن الرجیم بسم الرحمن الرحیم، والذین جاهدو فینا لنهدینهم سبلنا ، صدق الله العظیم

محترم وروره په دې زموږ ایمان او یقین دې چې څوک دالله په لار کې دخدمت لپاره راووځي نو دالله ج نصرت او مرسته به حتما ورسره وي ستاسو دسوال په اړه به ووایم موږ چې دمحبس دماتیدو دپلان جوړولو اراده وکړه، په پورته ذکر شوي ایات مبارک مو یقین وو چې الله ج فرمایي څوک چې دالله په لار کې ووځي الله ج دهغه لپاره دنجات او کامیابي لارې ورښیي دزندان دماتیدو په پلان کې زموږ تکیه یوازې دالله ج په مرسته وه او دې له مشکلاتو او خطراتو ډک کار ته مو ځکه هوډ وکړ چې دکندهار په محبس کې زیات شمیر مجاهدینو ترسخت

کړاو او مشقت لاندي شپې تيرولې دوخت دظالمو چارواکو له خوا په ډول ډول عذابونو شکنجه کيدل، داکثرو مجاهدينو دراخلاصيدو تمه نه وه ځيني يې ظالمانو په اعدام محکوم کړي وو او دبعضو پر سر بيا ډيري لوړي روپۍ ايښودل شوي وي چې دې مظلومو انسانانو دابار نشواي اوچتولاي او ځينو بنديانو ته ويل شوي وو چې تاسو به کابل او باګرام ته انتقال کړو، نو دا ټول ددې سبب شو چې موږ يې دې کار ته وهڅولو او کلک عزم موو کړ چې ددې مظلومانو دراخلاصولو لپاره به هرنګه مشکلات پر ځان برداشت وو او خپله بندګي سعيه به کوو، هغه وو چې الله ج په دې کار کې موږ کامياب کړو او خپل هدف ته ورسيدو.

ددتونل دکيندلو پلان داسې وو چې لومړي مجاهدينو دکندهار دمرکزي محبس چې دکندهار هرات پر لويه لار دسرپوزې په سيمه کې واقع دي، دسړک په پنځه متري کې دجنوب طرف ته يو کور کرايه کړ چې څو کوټې يې درلودې مجاهدينو دلته ظاهرادساختماني شرکت په نامه، دګاډرو او نورو ساختماني وسايلو د جوړولو کارپيل کړ څوچي شا وخوا خلک په دې ډاډه شول چې دلته ساختماني کار روان دی، له هغه وروسته دسراي ديوې کوټې په دننه برخه کې مجاهدينو دتونل (لغم ) پرخوله کيندلو داالله جل جلاله په نصرت کار پيل کړ او ورو-ورو دا کار پر مخ تلی، تقريبا دپنځيمو مياشتو په مدت کې دتونل کار پايته ورسيد کوم ځاي ته چې مجاهدينو غوښتل هلته ورسيدل.

کومه شپه چې ټول کار خلاص شو او يوازي دمحبس دننه دهغې کوټې سميټي غولی پاته وو، چيرته چې مجاهدين اوسيدل، د۲۰۱۱ کال داپريل دمياشتې ( ۲۳ )نېټه دشپې دلسو بجو مهال وو چې له لاندي خوا مو دکوټې غولې سوری کړ، په دې وخت کې دمحبس دننه يوازي درې تنه بندي مجاهدين له دې پلان نه خبر وو، کله چې غولی سوري شو موږ او

بندي مجاهدينو سره وليدل په ډير تلوار مو هغوي، له ټول پلان څخه خبر کړل او دا مو ورته وويل، انتها يي کوشش وکړي چې موږ ډير کم وخت لرو ترڅو ټول بندي مجاهدين انتقال کړو، له هغه وروسته مو د تونل له دباندي برخې نه دراغځيدلي ټليفون غوږۍ دوي ته ورکړه ترڅو د تونل دننه برخه او دباندي مجاهدين سره په تماس کې وي، دمحبس دننه څو تنو مجاهدينو ته مو څوميله تومانچې او برچې ورکړې که کوم مزاحمت رامخته کيږی له دې وسلو نه به کار اخلي، له دې سره سم په پلان خبرو مجاهدينو ويده بنديان په نوبت رابيدار ول او تونل ته يې راکښته کول، په پلان خبردارو مجاهدينو ته موهدايت وکړچې که کوم بنديان مجاهدين بې زړه کيږی او وتلو ته زړه نه ښه کوي نو هغه په زور دې ته مجبوره وئ چې راووزي، نور له پلان سره سم دمجاهدينو انتقال پيل شو.

پوښتنه: ددې تونل داوږدوالي او سور اندازه څومره وه ؟

جواب: دا تونل دوه متره ترمځکه لاندي پيل شوي وو، اوږدوالی يې تقريبا ۳۶۰ متره (البته په دې کې ۱۲۰ متره هغه برخه وه چې مجاهدينو طرف غلط کړی و او اضافي خواري يې کړې وه ) او نور دومره اندازه وو چې سړي لږ چوخ (په ملاکوږ) پکې تللي شواي، په هرتقدير ښه په اسانۍ سره پکې تګ کيدلای شواي دمجاهدينو دانتقال په وخت کې موږ له هيڅ مشکل سره نه يو مخ شوي.

پوښتنه: دتونل په کيندلو کې له کومو وسايلو نه کار واخيستل شو؟

جواب: وسايل ټول عادي وسايل وو هغه وسايل چې زموږ او ستاسو کاريګر خلک ترې کار اخلي لکه کولنګ، بېلچه او لاسي ربړۍ، ماتاسو ته وويل چې دا کار ددغو وسايلو ترسويې لوړ وو مګر يوازې دالله نصرت وو چې موږ نه مايوسه کيدو او نه له دې کاره ستړيکيدو.

پوښتنه: داچې داتونل ۳۲۰ متره اوږد وو زیاتـه خاوره بـه راوتلـي وه دا خاوره تاسو چیرته انباره وله ؟

جواب: خاوره موږ پر یوه ځاي نه اچوله ددې لپاره ترتیب داسـی وو، یو مازدا موټر خاص ددې لپاره ولاړ وو چې دتونل څخه کومه خاوره راوزي هغه دباندي انتقال کړي، موږ دخاورې درا ایستلو لپاره کوچنۍ ریړۍ جوړې کړې وې چې دهغو په واسطه به خاوره راایستل کیده او پـه هغه ګړي به موټر ته پورته کیده پر مځکه مو نه اچوله، پـه ټولـه شـپه کـې مجاهدینو دومره کارکاوه چې ایله دا یو موټر بار کړي، هغـه موټربـه دا خاوره بازار ته وړه، ډیر وخت داسی وو چې هغه بـه یـې پـر کـوم ځـا خرڅـه کړه، څرنګه چې زموږ ځاي دساختماني شرکت پـه نـوم خلګـو پیژانـده نـو دموټر دانتقال پر وخت خلګو ته سوال نه پیدا کیده چې دلته څرنګه موټر همیشه رفت امد کوي.

پوښتنه: پـه تونل کې څومره کسانو کار کاوه، او څه وخت بـه دا کار پیل کیدی؟

جواب: لومړی تر دوو میاشتو پورې څلورو کسانو کار پـه کـې کاوه، بیا اته کسان شول چې دژمي په موسم کې به یـې دشـپې لـه ۸ نیمـو بجو ترسهاره کارکاوه وروسته چې شپې کوچنۍ شوې نو موږ کسان کرار کرار زیاتول چې دپای ته رسیدو تروخته یې شمیر تقریبا ۲۱ کسانو ته ورسیده، باید ووایم چې پـه دې ملګرو کـې ډیـر کسان دخاورې پـه انتقال مصروف وو او دکولنګ کار لږو کسانو کاوه، پـه دې کسانو کـې زموږ خورا همتناک مجاهد ملګري رایوځای شوي ؤ، تردې چې دهمدې ملګرو له جملې تر ۳۰۰ متره مسافې پورې کولنک یوازې یو تن وواهه.

او کاريوازي د شپې لمخې کيده دورځې دلته کار امکان نه درلود، څوکسان دلته په سراي کې او سيدل او نور به له دباندي ورته راتلل، د شپې به کارپيليده بيا تر سهاره، له هغه وروسته به زيات کسان بيرته په تياره کې خپلو ځايونو ته تلل بله شپه به بيا راتلل.

پوښتنه: دا چې تونل څومره اوږد يږي هلته د اکسيجن او هوا کمبود رامنځ ته کيږي او يو ډول نفس تنګي پېښيږي د دې لپاره تاسو څه ترتيب درلود؟

جواب: دتونل کيندلو په وخت تر يونيم سل متره پورې موږ دهوا له کمبود سره نه يو مخامخ شوي له هغه وروسته نفس تنګي پيدا شوه او دومره زياته شوه چې دکار هيڅ امکان نه و، بيا موږ «برقي پکې» پيدا کړې، هغو دنفس تنګۍ ستونزه کموله خو سردرد يې لاره، بيا مجبور شوو، يو ډول بنيۍ مو جوړې کړې چې بهربه لګيدلې وې او دپايپ په واسطه يې هوا داخل ته پمپ کوله، دا بيا ښه موثر شي و، خو دنفس تنګۍ ستونزه په ژمي ډيره وه چې اوړۍ شو بيا په تونل کې دننه نفس تنګي دومره نه وه.

پوښتنه: دکندهار به زندان کې څو بلاکونه دي چې بنديان پکې ساتل کيږي او دا تونل هم ډير اوږد دي نو تاسو څنګه وکولای شوای چې له دې نورو بلاکونو تير شي او ستاسو هدف سياسی بلاک ته ځان ورسوئ تاسو درهنمايي لپاره له کومو خاصو آلو نه کار اخيست که څنګه؟

جواب: په اول سر کې دومره مشکل نه وو او نه کومو الو ته ضرورت پيښيده او بل زموږ اکثرا تونل کيندونکي مجاهدين د دې سيمې بلد خلګ وو اندازه ورته مالوميدله خو کله چې تونل پر مخ ولاړ له هغه وروسته موږ نشواي کولای چې خپل هدف ته سيده ولاړ شو، وروسته موږ لار ورکه کړه او تقريبا ۱۲۰ متره کار مو عبث کړی و او له زندان څخه بيخي

بلې خوا ته کاږه تللي وو ، بيا موږ له انټرنيټ څخه دزندان نقشه راويسته او هغې ته موکتل ورسره مو له فاصله پيژندونکو آلونه کار اخيستـه چې ، بيا موږ ته کوم مشکل نه وو ، ستاسو په خبره ربښتيا هم زموږ ترهدف پورې په مخ کې ډير ځايونه دي ،لومړي دهرات –کندهار لوی سړک له هغه وروسته يوه داوبو ويا له تيره شوې او بيا په محبس کې دتوقيف خانې بلاک ، جنايي بلاک او سياسي بلاک دي موږ دالله ج په نصرت تردغو ټولو نقطو تير شو لومړی مو دتوقيف خاني مطلوب اطاق ته ځان ورساوه او وروسته دسياسي بلاک اووم نمبر کوټې ته .

پوښتنه : دکابل دګوډاګی اداري استخباراتي کسانو وويل چې دغه سراي چې دتونل کار پکې پيل شوي و دوه نيمې مياشتې مخکې دپوليسو لخوا تلاشي شوي و ددوي دا ادعاترکومه ځايه سمه ده ؟

جو اب : دا خبره بلکل بې اساسه ده په دې څه کم شپږمياشتي کې دتلاشی او يا نورې پلټنې لپاره نه په ښکاره او نه دکومې پلمې لمخې څوک راغلي دي ، که څه هم دې ځاي ته شا وخوا دزندان دامنتي کسانو ځاي ډير نژدې و ، او دې ځاي ته به عام کسان هم راتلل ، خو موږ داکار دومره په احتياط کاوه چې هيڅ څوک نه پوهيدل چې دلته کوم کار روان دي چې کاربه پايته رسيده سمدستي به موږ دتونل خوله پټوله او فرش به مو پرې اوارا وه ، عجيبه داده چې دې کوټې ته چې تونل خوله وه پکې کله کله به پوليس راغلل يا به يی اوبه او يا به يې له موږ سره چاوې وڅښلې ، مګر الله ج هغو ي کاڼه او ړانده کړي وو په هيڅ نه پوهيدل.

پوښتنه : دتونل کار څو څه کم شپږ مياشتې واخيستې او درې مياشتې وړاندې دژمي موسم و ، نو په هغه وخت کې تاسو ددې خطر نه احساساوه چې دلندبل له امله به دا تونل کښيني او يا به ونړيږي ؟

جواب: يو خو دا تونل ترمځکه دوه نيم متره لاندي پيل شوي و او دوهم سړ کال په ژمي کې دنورو کالونو په نسبت دومره بارانونه نه وو چې داوبو نو دې ډير لاندي لاړ شي، خو بيا هم پر کومو ځايونو چې موږ بيريدلو چې زيم ونکړي او يا لاندي کښته نشي، لکه دکندهار – هرات سړک چې ډير درانه موټر پرې تيريږي او تردې مخکې يوه ويالـه ده، دې ځايونو تـه مو يو ډول تختې ورکړې چې هغه ځايونه يې ښه محکم نيولي وو.

پوښتنه: له عامو خلکو سره دا سوال دي چې په دې دومره اوږده او تنګ تونل کې تر۵۰۰ دزياتو کسانو راتيريدل ډير مشکل کار دي ضرور دهوا دکمبود له امله نفس تنګي رامنځ ته کيږي او که لږ لږ نفر انتقالوي نو بيا وخت کم دی يوازي څو ساعتونه دي چې تاسو بايد خپل کار پايته رسولای واي که په دې اړه لږ توضيحات راکړئ؟

جواب: يوازي دالله ج نصرت وو چې موږ يې په دې مشکل امتحان کې کامياب کړو، او ددې کار په ښه ترتيب سره دانجامولو لارې يې راوښولې، لکه مخکې چې مو وويل دګيس درامنځ ته کيدو او دهوا تازه کيدو لپاره موږ دهوا دپمپ لپاره دتونل په خوله کې يوه اله نصب کړې وه چې د(بنی ) په واسطه يې هوا پمپ کوله، او له دې سره سره مو دتونل بل سر او په منځ کې څو ځايه برقي پنکې ايښې وې، او بل دټولو بنديانو انتقال په يو ځل نه وو، په محبس کې دننه له پلانه خبردارو مجاهدينو به دهرې کوټې بنديان راويښول اولږ لږ نفربه يې لغم ته شوه (داخل )کول په تونل کې دغځيدلي ټليفون په واسطه به دتونل له سر سره تماس نيول کيده چې دهغې ډلې سر به هلته ورسيد نو دبلې کوټې بنديان به راويښدل او تردې دمخه يوه کوټه هم په بله کوټه نه وه خبره چې څه تيريږی ځکه که خبر شوی وای ضرور شور، اوناري جوړيدې او مشکلات يې راپيدا کول، چې په دې ترتيب سره موږ له هيڅ مشکل سره نه يو مخ شوي.

پوښتنه: کله چې دا تونل هغې کوټې ته ورسید چې ستاسو مد نظر و، ددې کوټې فرش او غولی خو سیمیټي او ډیر کلک و، پردې چې دکلنګ وار کیږي حتما ږغ او درب کوي کیدای شي امنیتي پولیس خبر شوي واي، دا سمیټ تاسو څنګه مات کړ؟

جواب: هو ستاسو خبره سمه ده کله چې موږ نور تونل پایته ورساوه اویوازي دا ګانکریټي غولی پاته و، په دې وخت کې مویو قسم لوې داوسپیني پایې سمیټي فرش ته ورکړې اولاندي مو دموټر جیک ترلاندي کړ او سوکه سوکه مو حرکت ورکاوه چې له دې سره درب نه رامنځ ته کیده او دکوټې فرش لوړ پورته کیده ترڅو یو مخ دا سمیټ واوښت او دلغم خوله مو پرې کړه.

پوښتنه: دبندیانو انتقال له محبس نه په څو بجې پیل شو، او چې کله دباندي راوتل بیا یې له هغه ځایه په څه ډول انتقال وشو؟

جواب:دمجاهدینو انتقال دشپې پر لس بجې پیل شو اوتر۳ بجو پوري ټول دالله ج په نصرت راووتل، کله چې بندي مجاهدین دباندي راوتل لږ اندازه یې په پښو تګ کاوه او وروسته بیا څو عرادې لوي موټر ولاړ وو کوم مجاهدین چې په ښارکې نه وو بلد او دلرې سیمو وو هغوي په موټر کې انتقال شول او کومو کسانو چې په ښار کې شناخت درلود هغوي ته اجازه ورکړل شوه چې ځان خپله ترمحفوظ ځایه ورسوي، دانو داسې وخت وو چې دښاري موټرو یوه اندازه عبور او مرور پیل شو موږ ته معلومات کیده چې تردې دمه لا دښمن نه وو خبرچې موږ تعقیب کړي، یوه خبره باید یاده کړو موږ ددې په خاطر چې تروخت مخکې دښمن خبر نشي او یا بندي مجاهدین بې باکي ونکړي دټلیفون په واسطه دوستانو ته حال ورنکړي، ددې په خاطر مو داسې پلان جوړ کړي وو، هر بندی چې به له تونله راوتی هغه به کلک

تلاشي کیده او ټول شیان به ترې اخیستل کیدل یوازې دومره پیسې ورکول کیدې چې هغه تریو ځایه ځان په ورسوي.

پوښتنه: که دمجاهدینو دراوتلو په وخت کې دښمن خبرشوي واي بیا به تاسو څه کول ؟

جواب: موږ ددې خطر لپاره مخکې ترمخکې لا تصمیم نیولي و، دمحبس په شاوخوا کې مو وسلوال او فدایي مجاهدین ځاي پر ځای کړي وو که دښمن خبر شوي واي او دراوتلو کوشش یې کړي واي ناڅاپي حملې به پرې کیدلي او مخه به یې نیول کیده.

پوښتنه: څرنګه چې دا ډیر عظیم کارو ځیني خلګ ګومان کوي چې کیداي شي په دې کار کې دنورو کړیو لاس وي او دهغوي له لوري به مجاهدینو ته ډیر پر مختللي وسایل په واک کې ورکړل شوي وي په دې هکله تاسو څه وایاست؟

جواب: داخو هیڅ پټه خبره نه ده هغه وسایل چې مو ږ کار ترې اخیسته ټول هلته پراته دي چې هغه عادي وسایل کلنګ او بیلچې دي چې هلته پاته شول، او په دې کې نور دهیچا لاس نشته یوازې داسلامي امارت مجاهدین وو چې دامارت دمشرانو ترقوماندې او مشورې لاندې یې دا عظیمه کارنامه ترسره کړه.

پوښتنه: ځیني خلګ شک کوي چې دومره طویل المدت پلان دمحبس دامنیتي کسانو او شاوخوا دپرتو پولیسو له همکاري پرته نه شي ترسره کیداي ضرور په دې کې امنیتي کسانو مرسته کړې ده ؟

جواب: له موږ سره که اجیرې اردو، پولیسو او نورو کسانو مرسته کولاي نو بیا دادومره مشکل کار ته څه ضرورت وو نورې ډیرې طریقې وې یوه بله لنډه لاره به مو کتلي واي، که دمحبس امنیتي کسانو

همکاري کولای نو بیا دا دومره لوی مزله ته اړتیا څه وه؟، هغوي کولای شوای چې دمحبس دروازه په یوه حکمت خلاصه کړي، او یا دننه بندیانو ته وسایل ور وړی چې بندیان خپله په لنډه لار وتلي واي، مګر داسې نه وو هغوي هیڅ همکاري نه ده کړې، او بل په دې کې موږ له هیچا مرسته نه غوښته ځکه چې په هغه صورت کې بیا دا پروګرام داسې پټ نه پاتې کیده لکه اوس، حتما به تروخت دمخه موږ افشا کیدلو.

مجاهدینو یوازي دالله په نصرت سره دې کار ته کلکه اراده وکړه اودا وعده مو سره کړې وه چې راز به ساتو او خاص دالله درضادلاسته راوړلو لپاره به داکار کوو، په ډیر لوړ عظم مو دا کار پیل کړ، باید ووایم چې په دې کې له مجاهدینو پرته دهیچا لاس نشته.

پوښتنه: دتونل خوله خو په یوه کوټه کې راخلاصه شوې مجاهدینو ددې نورو کوټو دروازې څرنګه خلاصې کړي ځکه دشپې له خواخو دبلاک هره کوټه ځانته بنده وي ؟

جواب: نه داسي نه ده، دمحبس دعمومي بلاک لویه دروازه بنده وي دهمیشه لپاره مګر دنورو کوټو دروازي نه بندیږي ځکه دشپې لمخې دتشناب او اودس کولو ضرورت پیښیږی په وطاقونو کې دننه تشنابونه نه دي اماده.

پوښتنه: په راخلاصو شویو بندیانو کې مهم قومندانان هم موجود وو ؟

جواب: هو دټولو ازادشویو بندیانو تعداد **۵۴۱** تنه وو په دې کې ۱۰۲ تنه قومندانان، دلګي مشران او سرګروپان وو، چې ازاد شول، دا کسان زموږ ډیر دکار خلګ دي، چې تربند دمخه یې په جهادي امورو کې ډیر ښه فعالیتونه ترسره کول، زه الله ج ته امید لرم چې په راتلونکې کې به هم الله تعالي ددین دخدمت په لار کې ښه کار ترې واخلي.

پوښتنه: دکندهار دګوډاګې اداري امنيتي کسانو ادعا وکړه چې له زندانه دتللو مجاهدينو له جملې نه يې ۷۱ تنه بنديان بيرته نيولي دی، ددوي دا ادعا ترکومه ځايه سمه ده ؟

جواب: لله الحمد مجاهدين ټول ترخپلو ځايونو په خير ورسيدل، امنيتي کسان اوس دخپلې کمزوري دپټولو او دخلګو دتوجه اړولو لپاره يوازي په درواغو تبليغات کوي، دښار په مختلفو برخو کې بې ګناه ملکي وګړي چې دمزدوريو او کاراو بار لپاره له اطرافو او ولسواليو څخه ښار ته راغلي وي، ګرفتاره وي او دبنديانو په نامه يې معرفي کوي، زه تاسو ته په اطمنان وايم چې مجاهدينو کافي وخت درلود چې ترخپل ټاکلي هدفه پوري ځان ورسوي ځکه دښمن هغه ورځ سهار له لمرختو وروسته خبر شو چې په دې وخت کې مجاهدين ترډيره حده تللي وو، او بل ددښمن امنيتي کسان لويو لارو ته متوجه ول، ولې مجاهدين اکثر ددې سيمو بلد خلګ وو په ټولو پياده لارو اوکوڅو کې شناخته وو پر هغو لارو يې ځانونه وايستل.

پوښتنه: ډير محترم مجاهد وروره ! مجاهدينو او اولس ته څه پيغام لرئ ؟

جواب: ترهرڅه مخکې ټولو مجاهدينو او دافغانستان غيرتمن مجاهد اولس ته ددې وروستيو سترو کاميابيو مبارکي وايم الله ج دي دمجاهدينو قربانۍ قبولي کړي.

مجاهدينو ورونو او ټول اولس ته يوازي داويل غواړم چې انشاالله اوسني يرغلګر به دروسي يرغلګرو غوندی ستاسو دقربانيو په نتيجه کې له ماتې سره مخ کيږی، يوه خبره کول غواړم، هغه دا چې له دښمن سره مقابله او دښمن ته ماتي ورکول يوازي په حوصله کيږي موږ

او تاسي بري ته يوازي په كلك عزم او ټينګه اراده رسيدلی شو، اشغالګر دښمن او دهغوي ګوډاګيان نور انشاالله له ماتي سره مخ دي لږ وخت حوصله غواړي او په اخلاص سره ددښمن مقابلې ته ودريږئ .مجاهدين ورونه بايد خپلو مسوليتونو ته متوجه شي، ددښمن دسيسو او شوموپلانونو ته زيرک واوسي، خداي مکړه چې دمجاهدينو دبې غوری له وجې داټولې کاميابۍ له لاسه ورنکړو او دقربانيو ثمره مو بې ځايه ولاړه نشي.

الاماره: ډير محترم وروره !الله ج دي ستاسو ټولې قربانۍ چې په دې لاره کې مو ورکړي قبولي او منظوري کړي، داچې له موږ سره مرکې کولو ته اماده شوي ستاسو نه يوه دنيا مننه کوو

ـ تاسو ته هم کور وداني وايو چې زموږ اواز تر نورو رسوي

(له الاماره ويب پاڼې نه په مننه )

## زه دوهم تن وم چې را ووتلم

ليکوال: حبيب مجاهد

۲۳ کلن محمد ادريس چې دکندهار ښار اوسيدونکی دی، او له څو کلونو راهيسې يې داسلامي امارت ترسرپرستۍ لاندې دکندهار ښار په ښاري چريکي عملياتو کې دنده ترسره کړې ده، له اوس څخه اووه مياشتې وړاندې ددښمن له خوا په کندهارښار کې ونيول شو او دکندهار زندان ته وليږل شو، نوموړی وايي چې تر اوسه يې محاکمه نه وه شوې، او دنيولو له مهاله بيا تراوسه دکندهار دلوی محبس په نهم اطاق کې له ۱۵ تنو نورو مجاهدينو سره اوسيده، نوموړی دکندهارله زندانه

د راخلاصو شويو سلګونو بنديانو په جمله کې دوهم کس و، چې له ايستل شوي تونل څخه ووت او هماغه معلوم کورته يې ځان ورساوه، نوموړي خپله نوره کيسه داسې راته تېره کړه.

دکندهار زندان جوړښت داسې دی، چې سياسي بلاک په منځ کې يوجلا ازاد ځای يا صحن لري د ټولو کوټو دروازې همدې ځای ته راپرې دي، نودلته يوازې ددې بلاک عمومي دروازه تړلې وي او دبلاک دننه داطاقو دروازې هميشه خلاصې وي، چې له همدې امله بنديان ديوه اوبل اطاق ته ازادانه ورتلای شي، دغه رقم لمانځه ته هم ټول رايوځای کيږي.

ددوشنبې په شپه دزندان په همدې اطاق کې (چې وروسته دتونل سوری ورته راووت) زمونږ بندي مجاهدينو ملګرو نورو ملګرو ته ميلمستيا کړې وه، او له ټولو اطاقو يې يويو يا دوه کسان ميلمانه کړي وه، دې ميلمستيا ته، دهمدې بلاک دمسجد امام (چې يوبندي مولوي صاحب و) هم رابلل شوی و، اوزمونږ داطاق په نمايندګي زه ورغلی وم، نوموړ ډوډی ته ورغلو ډوډۍ وخوړل شوه، او وروسته مولوي صاحب خبرې شروع کړې، له لږ نصيحت نه وروسته مولوي صاحب حاضر ملګري دخلاصيدو له پلان څخه خبر کړل، چې تردې مهاله ملګري ترې خبر نه وو، هغه په خبرو کې په همدې کوټه کې ناستو ملګروته وويل چې نن شپه زمونږ دخلاصون عمليات ترسره کيږي، نوښه داده چې ورته اماده يو، ده وويل هرڅوک چې ووتل اصول دادي، چې سباترغرمې پورې به لومړی کوشش کوي چې تيلفون خلاص نه کړي، بيا که په تيلفون خبره کوي هم دا به نه وايي چې موږ داسې راخلاص شوو، له دې خبرو وروسته هغه ناستو ملګرو ته وويل چې ټول په پوره اخلاص دالله تعالی ذکر شروع کړي، ترڅو الله تعالی داپروګرام کامياب کړي، بيا موږ ټولو اذکار پيل کړل، تقريبا نيم ساعت به ټول ملګري په همدې اذکارو

مشغول وو ، وروسته هغو ملګرو چې له دې پلان څخه خبر وو ، دکوټې په يوه برخه کې توشکې او فرش ايسته کړل او غولى يې لغړ کړ ، لږ وروسته له لاندې خوا څخه همدا ځاى راوتکول شو ، اولږ وروسته موږ ورته کتل چې لاندې ملګرو له همدې ځايه ( جيک ) لاندې کړ ، او په زور ورکولو سره يې دکوټې سيمټي فرش راپورته کړ ، څرنګه چې دا ځاى ډير ژور و ، نو دجيک دزور درسيدلو لپاره يې څو محکمې پايې ورته جوړې کړې وې ، همدا پايې به يې دجيک په سر کيښودلې ، اوبيا يې زور ورکاوه ، دوى درى واره يې بيا هم جيک ورکړ ، ترڅو يې په سيمټي غولي کې ښه ازاده خوله پرې کړه .

له دې وروسته لاندې ملګرو خپلو پاسنيو ارتباطي ملګرو ته ، څو ميله توپانچې ، برچې او خنجران ، اويو بکس راپورته کړ ، په بکس کې مايوه دځمکنې ټيلفون دستګاه ( غوږى ) اويوه فلم اخيستونکې کامره وليدل ځينې نورشيان هم و چې ماسهي نه کړل ، په دې مهال چې مالاندې تونل ته وکتل دوه مجاهدين مې وليدل ، چې يوه يې داشيان راکړل او وروسته دواړو واپس له تونل څخه بلې خواته ووتل ، دلته نودبنديانو د ايستلو کار په زندان کې همغو څوتنو معلومو کسانو ته وسپارل شو ، دوى د تيلفون يومزى چې دتونل له بل سر څخه يې راتير کړى و ، دتيلفون له غوږي سره وصل کړ او په دې طريقه دتونل د دواړو خواوو ترمنځ ارتباط قايم شو .

له دې وروسته ارتباطي کسانو په خپلو منځو کې توپانچې اوبرچې سره وويشلې او څوتنه خپل نور اعتمادي ملګري يې هم ورسره ملګري کړل ، څرنګه چې له موږ سره په دې بلاک کې يوه دوه اطاقه جنايي قيديان وو ، دغه رقم په ځينو کوټو کې حکومت خپل جاسوسان هم دبنديانو په نامه راسره اچولي وو ، نومجاهدينو ويل که هغو څه

جنجال جوړاوه يا يي غالمغال کاوه، نوپه دې وسلو او چړو به يي له منځه وړي، دغه رقم دوی ويل چې دا بيخي يو له انتظاره لرې پروګرام ده، کيدای شي ځيني مجاهد ملګري به باور ورباندي نه کوي او نه به وزي، چې په دې صورت کې په زور ايستل کيږي، دغه وخت نو همدې ارتباطي ملګرو موږ حاضرو کسانو ته تونل ته له ښکته کيدو مخکې وويل چې کله له تونل څخه بل سرته وزئ هلته زمونږ نور ملګري مجاهدين ولاړ دي، هغوی له تاسو اضافه پيسې، تليفونان او نورشيان اخلي، دغه راز تاسې خبرو او تللو ته نه پريږدي نو تاسې به له هغو ملګرو سره جنجال نه کوئ، اوهرڅه چې درته وايي هغه به منئ، موږ ورته وويل سمه ده، نوپه دې وخت کې دناستو کسانوله جملې لومړی يوبل ملګری تونل ته ورکوز شو او دوهم زه پسې ورښکته شوم، تونل ازاد و، خويومخ هم ازاد نه و، يعني په ټيټه ملا او خاپوړو سړی ښه هوسا په کې تللای شوای، خوتونل مجاهدينو ډير عجيبه جوړ کړی و، په لسو پنځلسو مترو کې يې يوه بتۍ لګولې وه چې له امله يې تونل بيخي رڼاو، دغه رقم دهوا لپاره مجاهدينو دتونل له يوه سره تربله پورې تقريبا شپږ انچه غټ پايپ تير کړی و، دتونل په بهرني سرکې يې يوماشين چالو کړی و، چې هغه په دې پايپ کې هوا پمپوله، بيا دننه يې په مختلفو ځايونوکې په همدې غځيدلي پايپ کې سوري کړي وو، چې له همدې امله تونل هيڅ نفس تنګي نه درلوده، دغه رقم په تونل کې دوه لينه هم تير شوي وو، چې يوخو دتيلفون و او بل نه پوهيږم دبرق و که دڅه شي لين و، نوموږ په تونل کې تقريبا ۱۵ دقيقې مزل وکړ ترڅو بل سرته ورسيدو، له مانه يوکس مخکې و او ترشامې نور هم ډير کسان په تونل کې راروان وو، دلته چې دتونل خولې ته راورسيدو نو دلته هم تقريبا لس پنځلس تنه مجاهدين له وسلو سره ولاړوو، دوی له تونله راوتونکي ټول کسان

سخت تلاشي کول، له هر کس څخه یې ټیلفون او سیمکارت اخیست، دغه رقم که به له چا سره پیسې وې، نوله درې زره روپۍ زیاتې پیسې یې هم چاته نه ورپریښودلې، دوی همدلته یو څادر نیولی و او له دری زره اضافه روپۍ یې له ټولو کسانو اخیستې اوهغه څادره ته یې غورځولې، داددې لپاره که به له کومو نورو بندیانو سره پیسې نه وې، اویا به له دری زره نه کمې پیسې ورسره وې، نودوی له همدې څادره څخه دری زره روپۍ ورپوره کولې، چې دا دټولو ملګرو دچلښت او پیسه دار کیدلو لپاره یو ډیره ښه لاره وه، نودلته چې راووتلو په دې کسانو کې څو نفره یې زما شناخته مجاهدین وو نوهغو زه هم په خپل کار کې ورسره ملګری کړم، دلته په دې سرای کې پنځه شپږ لوی دسپارلۍ موټر ولاړ وو، نومور ته ملګرو هدایت وکړ چې کوم کسان له تونل نه راوزي، له تلاشي وروسته یې موټرو ته پورته کوئ او ورته وایئ چې خبرې او غږ به نه کوي یوازې دي خفیه اذکاروایي، ځکه دلته دزندان یو برج دې سرای ته بیخې نږدې و، او دوی ویل چې که شور وکړئ دعسکرو راپام کیږي، نوپه دې طریقه بندیان له تونل نه راوتل او مور په موټرو کې کینول، کوم موټر به چې ډک شو په هغه به موټان راکش کړ، وروسته چې ټول کسان راووتل مطلب راپوره شول، نوبیا ملګرو وویل چې په موټرو کې ډیر ځای نشته ځیني ملګري چې په همدې منطقه کې ښه بلد دي ښه داده، چې دمحله جات په خوا پیاده ولاړ شي، نو ددې سرای مخ خوا خو دمحبس په خوا خلاصه وه، نودسرای شاخوا چې دمحله جات په خوا خلاصه علاقه ده، دسرای دغه دیوال مو سوری کړ، وروسته هغه څوکسه ملګري چې غوښتل یې محله جات ته ولاړ شي، هغه له همدې سوري نه ووتل او پیاده دمحله جات په خوا لاړل، زه او څلور ملګري مې چې دښار وو، مور مشوره سره وکړه چې دا موټر به خدایزده کومې خوا ته ځي، ښه داده چې

موږ د ښار په خوا په خپله ولاړ شو، په همدې وخت کې د غه له بندیانو ډک موټر هم له سرای نه ووتل، موږ پنځه ملګري لږ وروسته همدې عام سرک ته راووتو، د سرک په غاړه مو لږ انتظار وکړ لږ وروسته یو ټکسي موټر راغی چې د ښار په خوا روان و، موټر ته مو لاس ورکړ او ټول په کې سپاره شوو، د غه وخت د سهار تقریبا څلور بجې وې، د ښار خوا ته چې راتلو په ډنډ چوک باندې پولیسو موټر ته بتۍ را رڼا کړه، او اشاره یې وکړه چې ځئ، د غه رقم په مد د چوک یې هم موټر ته بتۍ را رڼا کړه، مګر نور غرض یې نه وکړ، نو بیا په دې طریقه ښار ته راغلو او الله تعالی مو نجات په نصیب کړ.

یوه خبره چې باید ویې کړم داده چې د کندهار په محبس کې خویو همدا د سیاسي بندیانو محبس دی، چې تقریبا ټول مجاهدین په کې بندیان و ورسره نږدې د توقیف خانې په نامه یو بل جلا بلاک هم شته، په دې توقیف خانه کې هم زمونږ د ملګرو ( مجاهدو بندیانو ) یوه کوټه وه، د دې تونل کیندونکو مجاهدینو د توقیف خانې هغې کوټې ته هم له همدغه تونله یو جلا تونل وراېستلی و، چې په دې طریقه لله الحمد له توقیف خانې څخه هم لس پنځلس تنه مجاهدین ملګري را خلاص شول.

په ښار کې چې دورځې زه ګرځیدلم، او یا مې له سیمې نه معلومات کاوه، تر اتو بجو پورې عسکر نه وو خبر چې بندیان تښتیدلي دي، ځکه تر دې وخته په منطقه کې هیڅ تلاشي نه وه، له اتو بجو وروسته د دوی منډې شروع شوې، څنګه چې عسکرو موږ په ورځ کې دوه ځلې شمیرلو یو ځل سهار اته بجې او بیا ماسپښین، نو زما په ګومان په اته بجې چې دوی سیاسي بلاک ته ورغلي دي، نو به یې لیدلي وي چې بندیان نشته، او له هغه وروسته یې کوښښ شروع کړ.

ماچې هلته معلومات وکړ په سياسي بلاک کې يو تن مجاهد بندي هم نه دی پاته شوی، يوازې هلته يوه کوټه وه، چې په هغه کې ليونيان بنديان وو، هغه ليونيان پاته شول، نور د سختو مريضانو او زخميانو په شمول ټول بنديان راويستل شول، تردې چې يوتن زخمي بندي چې په پښو کې يې سيخونه لرل، په تونل کې دمزله په وخت له ډيره درده بې هوښه شو، مګر ملګرو دبې هوښي په حالت کې له تونل څخه راويوست او په موټر کې يې انتقال کړ.

(له لراوبر ويب پاڼې په مننه)

# طالبان دټلوالي ستراتيژۍ ننګوي

سيد سعيد

د۲۰۱۱ز، داپريل پر۲۵مه نيټه رسنيو خبرور کړچې طالب سرتېرو په مځکه کې دننه په سلهاوومتره لاروهلې اوبالاخره تېره شپه خپل مقصود منزل (دکندهاردعمومي محبس سياسي څانګې )ته رسيدلي دي .هېښونکې يې داچې هلته ته يې خپل «پنځه سوه »بندي ملګري په همدې پټه لار(تونل \ سمڅه )کې له ځان سره راايستلي اوپه همدې شپه کې يې خوندي ځايونوته بيولي دي. طالبانو دکندهارمحبس له جنوب څخه ترزندان پورې دپنځومياشتوکاراوزياروروسته ۳۲۰متره لارپرې کړې اوزندان ته يې سورۍ کړې ده .په داسي حال کې چې دزندان چارواکي ترلمرختوپورې خبرهم نه وو.دکندهار چارواکي دزندان له يادي شوي پيښې هغه مهال خبرشول چې ژورناليستانو دطالبانوله خوادپيښې

دجزئياتو ترنشرو روسته معلومات ځني وغوښتل. ددغه زندان څخه دسياسي بنديانو په دومره لوي شمېر كي وتل لومړی ځل نه دی، دامريكايانو دنيواك راهسي دوه واري نورهم په ګڼ شمېر كي مجاهد زندانيان ترې په تيښته برياليي شوي دي.لومړی ځل په ۲۰۰۳ز، كال كي په دغه زندان كي بندي طالبان وتوانيدل چي دزندان ددننه څخه نغم دباندي وباسي اودطالبانو يو مشهورقوماندان شهيد عزيزاغادځه باندي ځلو يښتوانډ يو الانو په ګډون ترې سلامت ووت.دوهم ځل د ۲۰۰۸زدجون پر۱۳مه نيټه طالبانو ديو منظم بريد په پايله كي ددغه بدنام زندان څخه ترزر(۱۰۰۰)تنه ډيرزنداني ملګري راخوشي اوخپلو مركزونو ته ورسول .دا(دربيم )ځل خوبې په ټلوالي اوحكومت داسي بې ساري ګذاراوكانه وكړه چي هغه دچاخبره «پزپربكړي كه شرم درلوداى نودچړې نوم به يې نه اخيست»ياني نورنونه ښايې چي ټلواله اولاسپوڅى رژيم يې دتېرپه شان تشي ادعاوي وكړي چي له طالبانو څخه يې پراخي سيمي نيولي دي، دومره مجاهدين يې نيولي دي اوهومره په اصطلاح ددولت سره يوځاى شوي دي.مجاهدين پريرغلګردښمن نه تنها په پوځي برخه كي برلاسي دي بلكي په سياسي، فرهنګي اواجتماعي ډګرونو كي يې هم غليم پرګونډ وكړى دى.خوپه لاندي كرښوكي يې دهمدې نامراده غليم له خواصرف دزندانيانو سره دوحشت بېلګه ييزانځورته تم كيږو.

دبشردوستو ! !انسان دښمني:

د۱۳۸۰لمريزكال دميزان دمياشتي دپنځلسمي نيټي راهيسي چي نړيوالي صليبي تروريستي ټلوالي دامريكا په مشرتابه، دخپلو استعماري اواستثماري موخواواهدافودتحقق په خاطردافغانستان پروياړلې خاوره ظالمانه اووحشيانه يرغل كړي دى، دافغانستان مظلوم اوپردين مين ملت يې دكمونستانودوحشتونو په څيرډيموكراسۍ په

نامه دبشردحقونودداعيانو ! ! پـه لاس دړنـدوبمباريو ، وژلـو ، تړلـو ، نيولـواوراز ، راز وحشـتونوپه ګـرداب کـي رابښـکيل کـړی دی. پـه افغانسـتان کـي دامريکـايې ښـکېلاک دمظـالمويوه بېلګـه دلسـهاووزروهيوادوالونيول اودشـبرغان، ګوانتانـامو ، بګـرام، کندهاراودپلي چرخي په زندانونوکي په داسي وحشيانه اوغيرانساني ډول ساتل دي، چي دجرمني دنازي زندانونوڅخه هم په همدي امريکايي محبسونوکي دزندانيانوحالات ډيربوږنوونکي اوبيروونکي دي، حتی دبشريت پـه تـاريخ کي بنيـادم (انسـان)ته د دا ډول شکنجواوتعذيبونو دورکولومثالونه بيخي کم ترسترګوکيږي. که څه هم اوباماد ولسمشری دټاکنوپـه ځغاستوکي پـه پرلـه پسې توګـه داژمني تکرارولې چي ټول بدنام وحشي زندانونـه پـه ځانګړي ډول ګوانټانـاموا و..... بـه تـړي ځکـه دامريکااعتبارته يې په نړيواله کچه تـاوان رسولی دی. ولـي متأسفانه چي تراوسه لاګڼ شمېرافغانان صرف ديرغلګروسره دمخالفت دشک اوشبهې پربنسټ دګوانټانـامو ، بګـرام اونوروپټواوښکاره زندانونوپـه توروتيـاروکي دهرډول قـانوني، حقـوقي اوبشـري نورمونواوارزښـتونو خلاف له کلونوکلونوراهيسي بې پوښتني -ګروېږني پراته دي چي نه يې دکابل رژيم چي ځان ته دمنتخب دولت نسبت هم کوي پـه اړه څـه کولی شي اونه يې هم په درځنونودبشري حقونوددفاع په نوم ټولني غم خوري.

## دبګرام زندان :

بي بي سي دبګـرام دزنـدان څخـه دخوازاد شـوافغان بنديانولـه خولې خبرورکړچي: دامريکايانولـه خوا پـه هغـه زنـدان کـي سـاتل شـوي ووچي دتورزنـدان پـه نـوم شـهرت لـري .دوی وايـې چي :هلتـه پـه جلا- جلاسـړوخونوکي دبنديانوسـاتل، پــه شپوشـپوبې خوبـه کـول، لـه

چتونو راځوړندول، په سپيو داړل، په وسلوډارول، لڅ درول په اوبو کې غوټه کول اوبرېښنايي شارټونه ورکول معمول (قانون )دی. پردغو بنديانو دطالبانوسره دهمکارۍ تورو، مګر پر يوه يې هم ثابت نه شو. داهغه بدنام زندان دی چې په ۲۰۰۲ زکال کي دوه تنه بنديان دامريکايي عسکروله خوادراځوړندولواووهلوله امله پکي شهيدان شول.

Le Nouvel Observateur ورځپاڼه دبګرام څخه ددروتنوازادشووافغان بنديانوله قوله ليکي چې دکابل ولايت اوسيدونکي دي په تېروڅلوروکلونوکي يې اسمان نه ؤليدلی اوس ورته عجيب ښکاري، هغوی دبګرام دتياره زندان په بندوپخووکوټوکي په داسي قفسونوکي اچول شوي ووچي نه يې خوب پکي کولی شو ی اونه هم سم پکي دريدلی شو ی. ددغوازادشوبنديانوله ډلي څخه احمدهغه څوک دی چې کورنۍ يې فکرکاوه هغه (احمد )پخوالامړشوی دی، خوخبرنه ووچي احمداوس هم ژوندی اودامريکايانوسره دبګرام په زندان کي بندي دی. يوبل ازادشوی تن حاجي ګل رحمان دی چې دمخ غاښونه يې څوکاله مخکي دامريکايي عسکروله لوري دوهلوټکولوپرمهال مات شوي دي. هغه وايي :کله چې په لومړي ځل دبګرام زندان ته بوتلل شونو دامريکايانوله خواپه يخچال ته ورته سړه کوټه کي په ځنځيرونوتړلی ترډول ډول شکنجولاندي ساتل کيده په داسي حال کي چې دبګرام دساړه ژمي ترټولوسختي سړې شپې اوشپې وې. ګل رحمان وايي :دهغې حادثې له امله چې له ده سره يونيول شوی بندي دزندان دساتونکوله خواترڅلوروځوپرله پسې راځړولوورو سته ساه ورکړه سخت ځوريږي. نوموړې ورځپاڼه ليکي چې داسيرانوسره داډول بې رحمانه کړني په امريکايي زندانونوکي ديومنل شوي معيارپه توګه ترسره کيږي. دبشري حقونودټولنودتازه څېړنوله مخي دبګرام په

زنــدان كــي دامهــال شــا وخوازر(١٠٠٠)تنــه افغانــان دطالبانوســره داړيكودرلودوپه شک بنديان دي اودهرډول قانوني برخورد څخه بې برخي دزندان دتوروتمبوشاته دنامعلوم برخليک په غيږكي پراته دي .بلخوابيــا ويــل كيــږي چــي امريكــا دبگرام زنــدان چــاري افغــان ملگرو(گوډاگيانو)تـه سپاري گويـاچي وښيې افغانستان يوخپلواک هيوادډی هرڅه يې افغانان پخپله ترسره كوي كه څه هم امريكايې ځواكونه وايې چي دبگرام زندان واک به افغانانوته وركوي خوفكرنه كيږي چي دنوموړي زندان ټولي چاري دي دكابل اداري ته حواله كړي .دبېلگې په توگه دافغانانودنيولو، بندي كولو اوبيايې تر اوږدې مودې پوري پـه همـدې تعـذيبځايونوكي د دساتلو واک اواختياربـه بيـاهم دبهرنيانوپه لاس كي وي نه دافغانانو.

## مخفي اوشخصي زندانونه :

په افغانستان كي دغربي ډيموكراسۍ پـه تېره يوه لسيزه كي پـه څرگنــدوامريكايې اودولتــي زندانونوســربيره پــه پلازمينــه كابــل اونوروولاياتوكي، دمخفي اوشخصي زندانونوشميره هم خورااوچته ده . ويــل كيــږي چــي دازندانونــه دكــرزي دمشــاورينو، دپارلمــان دغــړو، وزيرانو، واليانو، او يوشميرقومندانانوپوري د تړلوكسانوله خوا اداره كيـږي اوهغـوى لـه شـواهدو او اسنادو پرتـه ځـان تـه دهرمشـكوک كـس دنيولوحق وركوي، حتى ډير ځله خويي يـوازي دپگړۍ اوږيـري درلـودو پـه تـور هيـوادوال نيـولي، خپـل زندانونـه يـى پـرې ډک كـړى او بيـايي دډيروپيسـوپه بـدل كـي خوشـي كـړي دى. متاسفانه كـوم زنـدانيان چـي پيسي نلري، هغوي په عمري قيداواعدام محكوم شوي دي، چي ښكاره بيلگــې يــي پــه ٢٠٠٧ز، او٢٠١١ز، كــال ډلــه ييزاعدامونــه دي. پــه دي

وروستيو کي رسنيو دبگرام په هوايې اډه کي دمشهور بدنام زندان څخه علاوه ديوبل پټ توقيف ځاى دموجوديت خبردارى هم ورکړ .دنړيوال سره صليب ادارې چي دڅه وخت راهيسي امريکايان په بگرام کي دنيول شوو افغانانونومونه ورکوي، منلې چي په بگرام کي دمشهورزندان ترڅنگ يوبله پټه بنديخانه هم شته. دغه راز کندهار هم دکابل اونورو ولايتونو په څيريوله هغوولايتونو څخه دى چي دعمومي محبس څخه پرته نور زندانونه هم پکي موجوددي. دکندهارپخواني والي اواوسني تنظيمه رييس اسدالله خالد ، دولايتي شوريوژل شوي رييس ولي کرزي اود پارلمان اوسنى لومړى مرستيال خالد پښتون ځانگړي اوجلا ، جلازندانونه اوتحقيقاتي ځانگي دلودې، چي وخت په وخت به يې هيوادوال له مجاهدينو سره دملاترپه تورنيول، او په مياشتو ، مياشتو په دى زندانونوکى ساتل.وروسته به يې ځيني اسيران د ډيروپيسو په بدل کي خوشي کول اوکوموکسانوچي به پيسې نه درلودې نوهغوى بيچاره گان به يې دڅرخي پله اودکندهاردمرکزي زندان توروغيږوته سپارل.

## دکندهارزندان :

دکندهارمرکزي زندان دښارپه لويديځه دروازه کي دسرپوزي غره ته مخامخ، دکندهار- هرات پر لويه لار واقع دي، چي دمستبدي شاهي کورنۍ دابادۍ اوبيارغوني سمبول بلل کيږي. دازندان دثورله کودتاڅخه وروسته دکمونستانوپه کرغيړنه دوره کي په افغانستان کي دڅرخي پله دمحبس څخه وروسته دوهم مشهورزندان وو ، چي دبنديانو دنوکانوايستلو ، په پښواولاسونودراځړولواوحتى غرغره کولوکړني اوکيسي يي هيوادوالوليدلي اواوريدلي دي. ددغه بدنام زندان په اړه

دکاناډااوتاواتايمزورځپـــاڼي ليکلـــي چـــي:کانـــاډايي پوځيانوپـــه سلهاووافغان بنديان ترپلټنووروسته ددغه زندان چاروا کو ته سپارلي چـي بيادزنـدان دچاروا کولـه لـوري سـخت شـکنجه شـوي دي، حتـی دکاناډايي پوځيانويوې افسري اعتراف کړی چي زيات شمېربنديان يې ليدلي چي دکندهارادارې لـه خوابـه دشـپې پـه تيـاره کي ددوی مرکزتـه نژدې پـه مرميوويشتل کيدل.داخبري هغه مهال راسربيره شوې چي تيرکــــال کانـــــاډايي ډيپلومــــاټ ريچـــارډکولفين دکندهارڅخـــه ترستنيدووروسته هلتـه(دکاناډا)دپارلمان دفاعي کميټې تـه وويـل :شواهداواسـنادلري چـي دکنـدهارادارې ددوی لـه لـوري بـري شـوي اوبياورسپارل شوي زندانيان کړولـي اوشـکنجه کـړي دي. دکانـاډايي پوځيانواوډيپلوماټانوديادوشووخبروپه غبرګون کي دکندهاردمحبس پخواني رئيس ډګرمن عبدالله باورکنويسټ ورځپاڼي تـه ويلي چي: هو !بنديان شکنجه شوي اويوشمېريې سخت وهل شوي چي لاسونه اوپښې يې مات شوي وو.پـه ۲۰۰۸ز، کال دکندهارپـه مرکزي زندان کي اسيرانودنه خوړلوپه اعتصاب لاس پوري کړ او ددووسووتنوپه شمير زندانيانوخپلي شونډي ګنډلي وي.هغوی دچاروا کودناوړه کړنوڅخـه سرټکاوه او ويـل چـی:«ترهغوپـوري بـه دنـه خوړلواعتصـاب تـه دوام ورکړو، ترڅوچي زموږپـه دوسيوباندی لـه سره غـورو نشـي، داڅنګـه دولـت ! !دي چـي يـوه ډلـه قاضـيان مـوبي ګنـاه اوبـري اعلانـوی اونورموبياپه شل کاله قيداواعدام محکوموي» ! !.لـه نيکه مرغـه چي دهمـدې کـال دجـون پـر۱۳مـه نيټـه چـي، داا عتصـاب لاپـاي تـه نـه ؤ رسـيدلي، ددي معصـوموزندانيانوناره هســک څښـتـن (جـل جلالــه) واوريدله اودمجاهدينو لـه خواپرهمدي زندان بريدترسره شو، چـی پـه پايله کي يی ټول بنديان ازاداوخوشي کړای شول اودزندان دتوروشپوله

توروتياروڅخه دازادۍ په سپين سهاريې هركلي ته خواره نسيم په خوشبويه اومعطره فضاءكي دمباركۍ پيغام ډالۍ كړ، ملاتړته يې دليري ختيځ له هسكه ځلانده لمربي شميره پلوشي راوليږلي اودازادي بلبلان ئې ترخپلوجونګړوپه اتڼونوبدرګه كړل.

پوښتنه داده چي يرغلګرواودكندهارلاسپوڅي اداري په سيمه كي دپراخ موجوديت سربيره، دجاسوسي افرادواوډلګيواو رازراز پرمختلليو اسبابودشتون سره سره په مركز(ښار)كي دننه دطالبانود دومره دوامداره اومهم پلان (زندان ته سوري )مخه ونشوى نيولى، نودښارڅخه دباندي په ولسواليوكي به بياڅرنګه دطالبانوزورمات اونفوذله منځه يوسي ؟! ښايي داډول پوښتني دډيروسره مطرح وي په تېره بياهغه مهال چي دټلوالي قوماندانان اوپه ځانګړې توګه جنرال پيټرايیس ادعا كوي، چي دطالبانوڅخه يې پراخي سيمي لاندي كړي دي اونورنشي كولى چي سرخوږى ورته جوړكړي.

واقعيت داچي مجاهدينو دهيوادپه لراوبركي پرنيواكګرو او دهغوى پرافغان ملاتړو داسي هېښنده بريدونه ترسره كړل چي دولسواليو او مهمو مركزونوتخليه كولوته يې اړايستل، دبېلګې په توګه په نورستان او كونړ كي دولسواليو او مهمومركزونوتخليه، لغمان اوكابل دفاع وزارت كي دننه بريالي بريدونه اوپه كندهاركي دمحبس يادوه شوې حيرانونكې پېښه يادولى شوچي دټلوالي اويارانويې ټولي دپرمختګ ادعاوي ردكړې.په ټوله كي سړى په زغرده ويلى شي چي طالبانوپه خپلوسياسي اوپوځي لاسته راوړنوسره دټلوالي نوي اوزړې طرحي اوستراتيژۍ وننګولې.

# زندان ماتوونکو اتلانو د (صاحب الثقب) یاد را تازه کړ

لیکوال: حامد

د سرپوزې ددې اوسني محبس نه د قندهار ښار لورته نږدې په یوه کور کې تورن اسماعیل خان اوسیدی او دیوه تن د غداري په پایله کې هغه له دې کوره په تیښته بریالی شو کاش دهغې پیښې په اړه په هغه وخت کې خپرې شوې مرکې نن له ماسره وای ترڅو دبیګانې پیښې په اړه له کیدونکیو مرکو سره مو پرتله کړې وای. په هرصورت دهغه وخت دمرکه کوونکیو دایوه خبره په خوله وه چې طالب چارواکي نا اهله او دواک دکنترول وړتیا او صلاحیت نلري ځکه عجیبه خبره ده چې ددوی له مرکز کندهار نه څنګه یوسړی کولی شي له بنده وتښتي ! !هغه مرکه کوونکي اوس ماته ندي معلوم چې څوک او څوک و خو په یقین سره ویلی شم چې ډیری به یې د کرزي دادارې مامورین او لوړپوړي چارواکي وو ځکه هغه مهال دا خلک دطالبانو دمخالف صف کسان و او په طالبانو پسې دتبلیغاتو له پاره یې دبی بی سی اونورو لویدیځوالو راډیوګانو مایکونه په اختیار کې لرل.زموږ په عامو مجلسونو کې چې کله یوڅوک غټه خبر ه اوپه چا پورې تمسخر وکړي نو یونیم ورته وو ایي : دومره غټه خبر مکوه په سربه دې ماته شي یعني بیا به دې زیږې سترګې نیولې وي او په خپله به له داسې سرنوشت سره مخامخ شوی یې دومره لویه خبره ښه نه وي.

خامخا به هغه مهال هغو مرکه کوونکوته یوچا دا نصیحت کړی وي خو دوی به بابیزه ګڼلی وي او دتیرې دوشنبې په بیګا چې دکندهار په محبس کې کومه پیښه رامنځته شوه او ۵۴۱ مجاهدین دخپلو څو پاکو او مخلصو ورونو په یوه عجیب پلان سره دصلیب او دصلیب

دچوپړيانو له محبس نه وويستل شول مورږ په دی ارتباط دانه وايو چی دادکرزي داداري بيکفايتي او نا اهليت په ډاګه کوي ځکه هغوی خو له اصله دبی کفايتو او نا اهلو ټولی ده او د مصر دمبارک او دتيونس دزين العابدين سرنويشت ته دې شپې شماري حتما به دهغوی له سرګزشت سره مخامخ کيږی.

اصلا دطالبانو دې ستر برياليتوب دمتحده ايالاتو او ناټو ټول اهليتونه او وړتياوې له خاوروسره خاوری کړې هغه مجهزاو په نوي تکنالوژۍ سمبال ځواکونه نن دطالبانوله خوا له داسې ماتې سره مخامخ کيدونکي دي چې مورخين به يې خامخا په يواړخيزه توګه ليکنو ته اړکيږي يعني بي طرفه مورخين به د دومره ستر ځواک په داسی ډراماييي شکل ديوه کمزوري خو په ايمان مسلح ځواک په لاس دماتيدلو په مهال خامخا دطالبانو لوری کوي چې رښتيا دا خلک ديوه ستر ځواک (الله) په مرسته دې سترې سوبې ته رسيدلي وو.

ځينی مغرض اولاسپوخي ليکوالان دطالبانو ډيری پيښې په يوه مشخص لوري پورې تړي او هغوی چی کوم برياليتوب ترلاسه کړي نو دا دنورو لوريو د مداخلې له برکته يادوي او دطالبانو پرخلاف خپلې پوچې او بی اساسه تبصرې ليکي خو زه له بيګارا هيسې ددې پيښې په اړه دهغوی غبرګون نه وينم ځکه دغه ډله ليکوالان ددې سپين حقيقت ترشا ديوچا لاس لرلو ته هيڅ بهانه نشي پيداکولی له دې حقيقت نه ليدونکو افغانانو نه خو زما په اند هغه دواشنګټن پوسټ ليکوالان هم ښه دي هغوی په داسې وخت کې کله په دومره لوی حقيقت پښه نشي اړولی.نن سبا هغه سترې او تاريخي ورځې دي چې په معنوي توګه دښمن او دهغه لاسپوخي دګردې نړۍ پر وړاندې دومره شرمنده اوبيسيکه ښکاري چې کله هم پخوا نه وه ليدل شوی دوی له دې سترې

شرمندګی او ماتې وروسته ددنيا په وړاندې سرونه ځوړند اچولي او دسوی په څير خپلی پښې مچوي دخدای ستر پيغمبر صلی الله عليه وسلم وايي: اتقوا فراسه المومن فانه ينظر بنور الله.

هوکې، د جهاد د سنګر هغه څو سپيځلي مجاهدين چی دا تونل يې وهلی او دا ډيره موده يې دخپلو ورونړو دخلاصون له پاره په ډيره ځيرکتيا سره خپل کار پرمخ بيولی او ددوشنبې په شپه يې په تام او مکمل برياليتوب سره خپل کار پای ته ورساوه هغه مومنان دي چې بايد دښمن يې ددې نبوي لارښوونې په رڼا کې وګوري ددوی له فراست او ځيرکتيا دې ويره وکړي او نور دې ددې ولس له زورولو لاس واخلي .هوکی !دا مجاهدين زه د اسلامی تاريخ دستر سرخيل اونوميالي مشر محمدبن مسلمه رحمه الله دلښکر له هغه ستر مجاهد سره پرتله کوم چی په تاريخ کې په (صاحب الثقب )سره يادېږي هغه چې دقسطنطنيې «لويه کلا»چې له څو مياشتو محاصرې وروسته هم فتحه نه شوه بالاخره نوموړي ګمنام مجاهد هغې کلا ته په پټه په يوه تونل کيندلو سره فتحه کړه او هغه ستره سوبه يې ترلاسه کړه چې داکارنامه يې په اسلامي تاريخ کی په زرينو کرښو ليکل شوی ده .خو دې مجاهدينو ته زه يوه توصيه لرم او هغه دا چې دوی هم بايد دا ستر عمل اخرت ته وساتې لکه هغه ستر مجاهد صاحب الثقب چی خپل لو ی عمل اخرت ته ساتلی وهغه داسې چې کله هغه کلا فتحه شوه نو دمجاهدينو لوی سالار محمد بن مسلمه رحمه الله به هره ورځ نارې وهلې چې دا سوری چا جوړکړی و هغه دې ماته ځان را وښيي څو ورځې وروسته دا مجاهد دشپې له مخې دخپل مشرمحمدبن مسلمه خيمې ته ورغی او ورته ويې ويل: اې مشره !ته ولې دخلکو پردې څيروې ؟ !زه به هغه مجاهد په څو شرطونو درښيم خو

ته لومړی وعده وکړه چې دا شرطونه به منې هغه ومنل او مجاهد خپل شرطونه داسې ورته بيان کړل:

دې مجاهد ته به کوم انعام نه ورکوي.

دهغه دنوم پوښتنه به نه کوې !صاحب الثقب مجاهد له مخ نه نقاب لرې کړ او ځان يې ور وښود ، تاريخ ليکې چې محمد بن مسلمه رحمه الله به ترمرګه په دعا کې ويل:

اللهم احشرني مع صاحب الثقب ای الله ما داخرت به ورځ له صاحب الثقب ( هغه نغم کيندونکي )سره راپورته کړه !

نو اوس هم دې سترو مجاهدينو ته لومړی ددوی ددې شاهکاري مبارکي وايم چې په خپله هيښونکې کارنامه سره يې داسلامي تاريخ ديوه زرين باب دقسطنطيې دفتحې ياد راتازه کړ اوپه دې توګه يې داسلامي تاريخ ديوه ګمنام خو ستر غازي ( صاحب الثقب ) په قدم ګام کيښود په مبارکی سربيره مې له دې سترو مجاهدينو نه غوښتنه داده چې دوی دې هم دهغه ستر مجاهد په څير خپل دا درونـد عمل اخرت ته وساتي په والله که په ټوله نړۍ کې دومره ارزښت وي چې ستاسو ددې ستر عمل عوض وګرځي نو ددې دنيا له نوم او عوضونو تيرشئ او دا لوی عمل اخرت ته وساتئ او مونږ چې ستاسودا عمل ستايو او له تاسو سره خواخوږی لرو په همدی نيت الله ته داسې سوال کوو لکه محمد بن مسلمه به چې کاوه:

اللهم احشرنا مع اصحاب الثقب آمين وصلی الله علی نبيه الکريم

له الاماره ويب پاڼې په مننه

دکندهار د سرپوزي زندان له ماتېدو وروسته چې په نړيواله توګه دمجاهدينو ستره بريا او ددښمن بې سابقې رسوايي وبلل شوه، دښمن هڅه پيل کړه، ترڅو دبې ځايه تبليغاتو له لارې ورپيښې رسوايي جبيره کړي، په دې لړ کې دښمن ادعاګانې پيل کړې، چې نږدې پنځوس تنه له زندانه وتلي زندانيان يې بيرته نيولي دي، خو څرنګه چې دې خبرې هيڅ بنياد نه درلود دښمن يې دثبوت لپاره هيڅ شواهد وړاندې نه کړای شول، دغه راز داسلامي امارت له خوا ددښمن دا ادعاء په کلکه رد او بې اساسه وبلل شوه.

## په کندهار کې دزندانيانو دبيانيولو دپوچې ادعاء په اړه داسلامي امارت دوياند څرګندونې

دتيرې دوشنبې په شپه داسلامي امارت قهرمانو مجاهدينو ديولړ برياليو تاکتيکي عملياتو په پايله کې وکړای شول، دکندهار له زندان څخه ټول (۵۴۱) تنه زنداني مجاهدين راخلاص کړي، بايد څرګنده کړو چې له پيله ددې عملياتو دکاري پلان يوه مهمه برخه له زندان څخه دراوتليو مجاهدينو په سالمه توګه له سيمې دانتقالولو عمليه وه، چې لله الحمد له پلان سره سم دسهار له راتګ نه مخته دخلاصون دعملياتو دا وروستۍ برخه هم په بريا سره پايته ورسيده او بنديان ټول خوندي سيمو ته انتقال شول.له دې عملياتو وروسته کله چې خبره مطبوعاتي شوه، او په نړيواله کچه دکابل د رژيم لپاره يوه نه جبيره کيدونکي شرمندګي وبلل شوه، دښمن له پيښې شوې رسوايۍ

د تيښتې د وروستۍ هڅې په توګه يو ځل بيا خپل پخواني تاکتيک عملي کړ، د کندهار د لړزيدلې اداري مشر د بنديانو د بيانيولو پرله پسې ادعاګانې پيل کړې او تيره ورځ يې وويل چې نږدې شپيته تنه بنديان يې بيرته نيولي دي.

د کندهار تش په نامه والي وايي چې دوی د مجاهدينو د بيرته نيولو لپاره په کندهار ښار او ولسواليو کې پراخ عمليات پيل کړي دي، او دده په وينا داچې بنديان په ( بايوميټريک ) سيستم کې ثبت شوي دي، نو نيول يې ورته اسانه دي.

په دې اړه بايد ووايو چې تيره ورځ رويټرا ژانس راپور ورکړ چې د امريکا د دفاع وزارت ويانـدې ( ډګرمنې اليزابيت روبينز ) ويلي دي، چې تراوسه ځکه امريکايي ځواکونو د خلاصو شوو مجاهدينو د بيا نيولو په عملياتو کې ګډون نه دی کړی چې د کندهار چارواکو ترې غوښتنه نه ده کړې، نوچې بهرني ځواکونه په دې عملياتو کې برخوال نه وي، د کندهار د ځايي ځواکونو عملياتي مورال او اراده خو کله هم ددې وړ نه ده چې په مجاهدينو پسې دې لرې پرتو سيمو ته د ورتګ جرأت وکړي يا دې د پلټنې عمليات ترسره کړي، د غه راز بايوميټريک سيستم چې د کندهار لاسپوڅي والي يې بيا بيا يادوی هم د بهرنيو اشغالګرو ځواکونو له خوا کاريدونکی سيستم دی، چې تراوسه داخلي عسکر ورته لاسرسی نلري، او که بالفرض ويې هم لري دا له امکانه بعيده ده، چې د يو ميليوني ښار کندهار ټول اوسيدونکي دې په دې سيستم معاينه کړای شي او يا دې د غه خلاص شوي کسان دومره زرله ولسواليو څخه ښار ته ورشي.

لـوړ حقـایق ثرګنـدوي چـې دښـمن داځـل خـورا خنـدوونکي دروغ وایـي، چـې هردعقـل ښتـتن پـرې پوهیـدلی شـي، دوی چـې تراوسـه دځینـو اجیـرو رسـنیو لـه لارې دنیـول شـویو پـه نـوم دوه درې کسـان غړولـي دي، هرڅـوک یـي جعلیـت درک کـولای شـي، لـه دې پرتـه دوی دخپلـې لـویې ادعـا داثبـات لپـاره مطبوعـاتو تـه هـیڅ قناعـت کـونکي شـواهد نـه دي وړانـدي کـړي اونـه هـم عقـل دا خبـره منـي چـي دمـرګ لـه خطـر سره مخـامخ خـلاص شـوي کسـان دي بیرتـه پـه هغـو لارو ورشـي پـه کومـو کـې چـي دښـمن ځـارکوي البتـه مـوږ موثـق معلومـات لـرو چـي دکنـدهار ښـارامنیتي او اسـتخباراتي چـار واکـې دخپلـو بـادارانو او مشـرانو دغولولـو او لـه هغـوی څخـه دامتیـازاتو دتـر لاسـه کولـو پـه موخـه دښـار بـي وزلـه او سـیدونکي او پـه ښـار کـې ددینـي مدارسـو شـاګردان پـه همـدې نامـه نیسـي او هغوی ته یې دبندیانو په نا مه وړاندي کوي.

مـوږ چـې دخلاصـو شـویو مجاهـدینو دبیـانیولو پـه اړه ددښـمن وروسـتۍ ادعاګـانې پـه کلکـه ردوو، خپلـو وطنوالـو او درسـتو مطبوعـاتو تـه ډاډ ورکـوو چـې لله الحمـد تراوسـه پـورې زمـونږ یـوتن راخـلاص شـوی بنـدي هـم بیرتـه ددښـمن لخوانـدی نیـول شـوی، مطبوعـات بایـد ددښـمن دې وروسـتي دروغجـن کمپـاین تـه متوجـه واوسـي، او لـه دښـمن څخـه دخپلـو ادعاګـانو سـپیناوی وغواړي، ترڅوخـدای مکړه، بـدنام شـوی دښـمن دخپلـې شـرمندګۍ په پټولو کې دازادو مطبوعاتو له اعتبار څخه استفاده ونه کړي.

داسلامي امارت ویاند

قاري محمد یوسف احمدي

# دکندهار زندان دماتېدو په په اړه څو شاعرانه کلامونه

## زنــــــدان

رضوان الله فیضاني

پــل پــه پــل مــا تیــږی هــر وحشــي زنــدان
وار ده د بــــاګرام او د څرخــــي زنــــدان
نـــه شـــو نـــور زغملـــی دوحشـــت پنجـــرې
دا د ســــــتمو او بربریـــــت پنجـــــرې
نور به نړوو هر طاغوتي زندان

ډیـــــرې دي حیرانــــې زولنــــې راتــــه
دا د ســــرو کفــــارو جیـــل خــــانې راتــــه
مونږ ته نه ټنګیږي فولادی زندان

نـــه کـــــوو بالکـــل دولچکـــــو پـــــروا
نشـــته خیـــال کـــې زمـــونږ د ځنځیـــرو پـــروا
تل به ماتوو هر فرعوني زندان

بیـــا هـــر یـــو زلمـــي کولنـــګ راخیســـتی ده
هـــم یـــې تبـــر، بېـــل پـــه څنـــګ راخســـتي ده
نه پریدی نور دلته د غربي زندان

وایـــــي فیضـــــاني چـــــې توکُـــــل کـــــوو
مـــونږ د ابـــــراهیم پـــــر پلـــــه مـــــزل کـــــوو
رنګ به کړو نن هر یو نمرودی زندان

وحشي زندان دکندهار وګوره

حمزه

غلــيم کــه هرڅو کوششــونه وکــړل
دبــي ګنــاوويی قتلونــه وکــړل

چــي پــه غربيــانولمبې بلــې نــه شــي
خونکــارې ســترګې بــه بــدلې نــه شــي

دوی داســلام شــمعه وژلــئ نــه شــي
زموږذهنونــه بــدلولئ نــه شــي

ددوی مقصــد پــوره کيــدلائ نــه شــي
اوس راګير شــوي خلاصــيدلئ نــه شــي

دابــي لــه شــکه يــی رښــتياويلي
ښــه يــې پــه ډاګــه بــرملا ويلــي

چــي زندانونــه بــه مــاتيږي اخيــر
دغــه قيــديان بــه راخلاصــيږي اخيــر

وحشــي زنــدان دقنــدهار وګــوره
مــات ديوالونــه يــی باربــار وګوره

ډيرپــه ســلګونوطالبان خــلاص شــوي
دغــه پــه فضــل دســبحان خــلاص شــوي

داســي زنــدان هــم دبګــرام بــه مــات شــي
ابوغريــب کيوبــا تمــام بــه مــات شــي

دغــه دظلــم جــام نســکوربه شــي نــور
خــتم دوران دظلــم اوزوربــه شــي نــور

نظــام دعــدل خامخابــه راشــي
همــدرده فضــل دالله بــه راشــي

# زلمي خو لاړل زولنو ته ژاړه

ملاعبدالرحمن معتصم

زندانه اوس خپلو تيارو ته ژاړه
زلمي خو لاړل زولنو ته ژاړه

اوس نو داته او دغه ساندې دوير
دوحشتونو جنازو ته ژاړه

چې بيا در ولويدې انګړ ته
نن وهغو سپينو وړانګو ته ژاړه

ته خو دنورو په عذاب ژوندی وې
نن دخپل تن شاړو زخمو ته ژاړه

نه دي پرېږدي هيڅ جنتي کندهار
لري شه لري دوزخو ته ژاړه

معتصم ستا په ورکيدو راضي يم
خپلو بې رحمو ستو ته ژاړه

# دریـــم فـصــل

## کامل مسلمان څوک دئ؟

لیکوال: مؤمن اقبال

په اوسني مهال کي که اسلامي ټولني ته وکتل سي نو مسلمانان دوه ډوله دي یو شعوري مسلمانان او بل مورثي مسلمانان دي هر یو بېل، بېل شرحه کړو ؛ خو مخکي به ووایو، چي کفري نړۍ د شعوري مسلمان سره دښمني او هم دا شعوري مسلمانان له منځه وړل غواړي.

**شعوري مسلمان**:

هغه مسلمان دئ، چي د خپلو عقایدو درناوي، عملي کېدل او د خپراوي لپاره هڅي د خپل ژوند یوه برخه ګرځولي وي، یعني دا چي تل په دې فکر کي وي، چي د مسلمان کوم تعریف دئ هغه په رشتیني ډول پرځان باندي عملي کړي آن تر دې، چي خپلو عقایدو ته تر ځان او مال هم وړاندي حق ورکوي، د خپل رشتیني حق د ترلاسه کولو لپاره د اصحابانو رضي الله عنهم پیروي کوي، هغوی رضي الله عنهم د ځان لپاره استادان او لارښوونکي ټاکي لکه عبدالله بن رواحة رضي الله عنه، چي د حقیقي ګټي د ترلاسه کولو لپاره یې بې ساري قرباني ورکړي دي او یوه نمونه به یې دلته ذکر کوو:

رسول الله ﷺ و مختلفو پاچهانو ته د اسلام د بلني ليکونه واستول، چي په هغو کي يې يو د حضرت حارث بن عمير ازدي رضي الله عنه په لاس د بصرا پاچا ته ولېږه حارث بن عمير رضي الله عنه، چي کله موته ته ورسېد د قيصر د حاکمانو څخه يو کس، چي شرحبيل غساني نومېدو دغه مبارک قاصد يې وواژه او حال دا چي دقاصد وژل د ټولو قومونو په اصطلاح کي يو ناروا کار بلل کېده پر نبي ﷺ باندي دا خبره ګرانه پرېوتله نو درې زره کسيز لښکر يې تيار کړ، حضرت زيد بن حارثة رضي الله عنه يې ور امير کړ، بيا يې ورته وفرمايل: که زيد بن حارثه رضي الله عنه شهيد سي نو بيا د ي جعفر بن ابي طالب رضي الله عنه امير سي، که دی هم شهيد سي نو بيا دي عبد الله بن رواحة رضي الله عنه امير سي، که دی هم شهيد سي بيانو د مسلمانانو، چي هر څوک زړه غوښتی هغه دي امير کړي يوه يهودي دا خبري واورېدې او وې ويل: د اکسان به خامخا شهيدان کېږي ځکه د لومړنيو انبياوو عليهم السلام د دغه ډول خبرو څخه مطلب هم دا سي و. رسول الله ﷺ يو سپين بيرغ جوړ کړ، حضرت زيد رضي الله عنه ته يې ورکړ، بيا رسول الله ﷺ ددوی ديوې ډلي سره ددوی درخصتولو په اراده د ښار د باندي راووت دښار دباندي، چي مجاهدين رخصتېدل پاته خلکو دعا ورته کوله، چي الله جل جلاله دي تاسو کاميابه کړي او په خير او سلامتيا سره مو رب تعالی جل جلاله بېرته راوله ؛او الله جل جلاله دي تاسو د هر ډول بدی څخه و ساتي. حضرت عبد الله بن رواحة رضي الله عنه ددوی په جواب کي درې بيتونه وويل، چي مطلب يې دا سي و: زه د خپل رب څخه دګناهونو بحښنه غواړم او يوه داسي توره وي چي په هغې سره زما د وينو داري رواني سي ؛او يا په يوه داسي نېزه ووهل سم، چي زما تر کولمو ينې ووزي څيري يې کړي کله، چي څوک زما د قبر سره تيرېږي نو وو ايي: الله جل جلاله دي تالارښود او کاميابه کړي رشتيا هم ته لمر او کامياب وې. ددې څخه وروسته دوی

مبارکان روان سول. شرحبيل ته هم ددوی د روانېدو خبر وروررسېد. د شرحبيل سره سل زره فوج دمقابلې لپاره تيار سو. کله چي اسلامي پوځ مخکي ولاړ نو ورته معلومه سوه، چي دروم پاچا هرقل هم د سلو زرو پوځيانو سره مقابلې ته راروان دئ ددې خبر په اورېدو سره اصحابان رضي الله عنهم فکر من سول، چي ددې دومره لوی طاقت مقابله شروع کړې او که رسول الله ﷺ ته خبرورکړي په دغه حال کي عبدالله بن رواحة رضي الله عنه په لوړ اواز وويل: اې خلګو! تاسو د کومي خبري څخه وېرېږئ ؟ تاسو د کوم مقصد لپاره راوتلي ياست ؟ ستاسو مقصد شهيد کېدل دي موږ هيڅ کله د قوت او د سړو د ډېروالي په زور نه يو جنګېدلي بلکي موږ يوازي د هغه دين په زور جنګېدلي يو چي د هغه دين په وجه الله ﷻ موږ ته عزت راکړی دئ. مخ په وړاندي ځئ ددوو کاميابيو څخه به يوه خامخا لاسته راوړئ يا به بريالېتوب وي او يا به شهادت وي. مسلمانانو، چي دا خبره واورېده مېړانه يې وکړه پر مخ روان سول آن تر دې، چي موته نومي ځای ته ورسېده ؛او جنګ شروع سو. حضرت زيد رضي الله عنه بيرغ په لاس کي واخيست د جنګ ميدان ته ورغی ؛او په مشری يې زورور جنګ شروع سو. دلږ وخت په تېرېدو سره د شرحبيل ورور ووژل سو ؛او ملګري يې و تښتېدل خپله شرحبيل هم و تښتېد په يوه کلا کي پټ سو. هرقل ته يې د مرستي لپاره استازی ولېږه هر قل دوسوه زره پوځيان راولېږل جنګ په زيات زور سره شروع کېدو، چي زيد رضي الله عنه شهيد سو دستي حضرت جعفر رضي الله عنه بيرغ په لاس کي واخيستي دخپل آس پښې يې په خپله پرې کړې، چي ببرته تګ يې د زړه څخه ووزي يو څو اشعار يې وويل، چي مطلب يې دادئ: اې خلګو ! جنت څومره ښه شی دئ او جنت ته نژدې کېدل څومره ښکلی دئ ؛او د جنت اوبه څومره يخي دي. دروم پرخلګو عذاب راغلی ماته په کار ده، چي هغه ووژنم، دا شعرونه

يې وويل توره يې واخيسته کافرانو ښى لاس څني پرې کړ بيا يې بيرغ په چپه لاس کي ونيوى کافرانو چپه لاس څني پرې کړى ده مبارک بيرغ په متهو کي ټينګ کړ، په خوله يې کلک ونيو، يو سړي د شا له خوا څخه ګوزار پرې وکړ، دى مبارک ولويداو د ستي شهيد سو. عبد الله بن عمر رضي الله عنهما فرمايي: موږ، چي کله شهيدان را ټولول حضرت جعفر رضي الله عنه چي مو راپورته کړى په بدن کي يې (۹۰) زخمونه وو. حضرت جعفر رضي الله عنه، چي شهيد سو خلګو عبد الله بن رواحة رضي الله عنه ته اواز وکړ، ده مبارک په دغه وخت کي د جنګ په يو طرف کي د غوښي يو ټوټه خوړله ځکه د درو ورځو څخه يې هيڅ شى نه وخوړلي، ده چي اواز واوريد دستي راپورته سو او وې ويل: حضرت جعفر رضي الله عنه شهيد سوى دئ ته په دنيا اخته يې دستي راغى بيرغ يې راپورته کړ، سخت جنګ يې شروع کړ، ګوته يې زخمي سوه په وځړيده ده مبارک داځړيدلې ګوته په پښه ونيوله لاس يې کش کړ، ګوته يې پرې سوه ليري يې وغورځوله. په سخت جنګ او خفګان کي فکر من سو، چي نه د مقابلې توان سته او نه همت سته. لږ وخت د دې فکر تېرسوي و، چي خپل زړه ته يې وويل: اې زړه! اوس د څه شي شوق او مينه درته پاته ده؟، چي ته يې له خطره وېرېږې د بي بي شوق غواړې؟ هغه په درې طلاقه طلاقه ده.، د غلامانو شوق غواړې؟ هغه ټول ازاد دي د باغ او پيسو شوق غواړې؟ هغه ټوله د الله جل جلاله په لاره کي صدقه دي د دې څخه وروسته يې يو څو اشعار وويل، چي د يو طرف څخه د حملې اواز راغلى، دى مبارک يې په مقابل کي سخت وجنګېدى؛ او ترشهيد کېدو پوري يې توره وچلول.([1])

---

([1]) وحدثنا ابن اسحاق، حدثني ... قال: امّر رسول الله صلى الله عليه وسلم على الناس يوم مؤتة زيد بن حارثة، ... فعبد الله بن رواحة، فان اصيب عبد الله ...ان جعفر بن ابي طالب حين قُتل دعا الناس عبد الله بن رواحة، وهو في جانب العسكر، فتقدم ... ثم قال: يا نفس

نه یوازي، چي عبد الله بن رواحة رضي الله عنه یوه عاشقانه جذبه درلوده بلکې ټول اصحابان رضي الله عنهم د قربانۍ احساس درلودونکي وو بلکي د اصحابانو رضي الله عنهم هر کس زمری او شعوري مسلمان و، په تېره قصه کي تاسو د نورو اصحابانو رضي الله عنهم نومونه ولیدل، چي د هغوی سره د عبد الله بن رواحة رضي الله عنه په څېر جذبه او د دین عشق و. همدا ډول نور اصحابان رضي الله عنهم لکه عمار بن یاسر رضي الله عنه، بلال رضي الله عنه، ابو سلمة رضي الله عنه، ابو جندل رضي الله عنه، ابو بصیر رضي الله عنه، د حبشې په لومړۍ او دوهم هجرت کي تلونکي اصحابانو رضي الله عنهم ټولو امت ته د پوره پوهاوي لپاره عملي درس ورکړی دئ، ټول مبارکان د دې امت غوره او په زړه پوري استادان دي، دوی مبارکان خپله هم د حقیقي ګټي لپاره ستړي سوي دي او نورو ته یې هم لارښود نه کړې ده همدا وجه ده، چي الله جل جلاله د مبارکو اصحابانو رضي الله عنهم ستاینه په قرآنکریم کي کړې ده او فرمایي:

مُّحَمَّدٌ رَّسُولُ ٱللَّهِۚ وَٱلَّذِينَ مَعَهُۥٓ أَشِدَّآءُ عَلَى ٱلۡكُفَّارِ رُحَمَآءُ بَيۡنَهُمۡۖ تَرَىٰهُمۡ رُكَّعٗا سُجَّدٗا يَبۡتَغُونَ فَضۡلٗا مِّنَ ٱللَّهِ وَرِضۡوَٰنٗاۖ سِيمَاهُمۡ فِي وُجُوهِهِم مِّنۡ أَثَرِ ٱلسُّجُودِۚ ذَٰلِكَ مَثَلُهُمۡ فِي ٱلتَّوۡرَىٰةِۚ وَمَثَلُهُمۡ فِي ٱلۡإِنجِيلِ كَزَرۡعٍ أَخۡرَجَ شَطۡـَٔهُۥ فَـَٔازَرَهُۥ فَٱسۡتَغۡلَظَ فَٱسۡتَوَىٰ عَلَىٰ سُوقِهِۦ يُعۡجِبُ

---

الى اي شيء تتوقين؟ الى فلانة - امراته - فهي طالق. والى فلان وفلان - غلمان له - فهم احرار، والى معجف - حائط له - فهو لله ورسوله... ثم اخذه عبد الله بن رواحة فقاتل حتى قتل شهيداً... اسدالغابة في عنوان (عين) باسم عبدالله بن رواحة

ٱلزُّرَّاعَ لِيَغِيظَ بِهِمُ ٱلْكُفَّارَ ۗ وَعَدَ ٱللَّهُ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَعَمِلُوا۟ ٱلصَّٰلِحَٰتِ مِنْهُم مَّغْفِرَةً وَأَجْرًا عَظِيمًۢا ﴿٢٩﴾([2])

ژباړه: محمد ﷺ دالله ﷻ رسول دئ کوم کسان، چي دده سره ملګري دي سخت دي پر کافرانو ؛ او په خپل منځ کي رحم لرونکي دي ته به وينې، چي رکوع او سجده کوونکي دي د الله ﷻ فضل او رضالټونکي دي ددوی نښي ددوی په مخانو کي د سجدې اثر دئ هم دا ډول ددې مثال په توراة او انجيل کښي هم سته لکه يو تخم ( چي لومړی راشين سي ) نازکه پونګه راوباسي بيا زوروره سي نو ښه په قوت کي سي بيا پر خپله تنه باندي برابر سي ( همدا ډول اصحابان رضي الله عنهم هم وو چي اول کمزوري وو وروسته الله ﷻ ورځ تر بلي قوت وروبخښه او دا قوت الله ﷻ ځکه ورکړ )، چي پدې قوت سره کافران د حسد له امله وسوځي. الله ﷻ د هغو کسانو سره وعده کړې ده، چي ايمان يې راوړی دئ، نېک کارونه يې تر سره کړي دي، چي الله ﷻ به مغفرة ورته کوي او لوی اجر به ورکوي.

په همدغه سورة کي همداراز الله ﷻ فرمايي:

لَّقَدْ رَضِىَ ٱللَّهُ عَنِ ٱلْمُؤْمِنِينَ إِذْ يُبَايِعُونَكَ تَحْتَ ٱلشَّجَرَةِ فَعَلِمَ مَا فِى قُلُوبِهِمْ فَأَنزَلَ ٱلسَّكِينَةَ عَلَيْهِمْ وَأَثَٰبَهُمْ فَتْحًا قَرِيبًا ﴿١٨﴾ وَمَغَانِمَ كَثِيرَةً يَأْخُذُونَهَا ۗ وَكَانَ ٱللَّهُ عَزِيزًا حَكِيمًا ﴿١٩﴾(3)

---

[2]: سورة فتح ، الاية: ٢٩

[3]: سورة فتح ، الاية: ١٨

ژباړه: بېشکه الله ﷻ راضي سو دهغه کسانو څخه چي ستا سره په سفر کي وو او ستا سره يې تر ونې لاندې بيعت وکړ. بيا الله ﷻ په هغه (اخلاص او صداقت) عالم و، چي ددوی په زړو کي و، نو الله ﷻ پر دوی باندي ارامتيا راواستول او دوی ته يې نژدې فتحه ورنصيب کړه (چي مراد ځني د خيبر فتحه ده) او الله ﷻ ډېر غنيمتونه ورنصيب کړه، چي دوی اخيستل او الله ﷻ غالب دئ؛ او زيات د حکمت څښتن دئ.

په بل ځاي کي الله ﷻ د اصحابانو رضي الله عنهم په اړه فرمايي:

رِجَالٌ صَدَقُواْ مَا عَٰهَدُواْ ٱللَّهَ عَلَيۡهِۖ فَمِنۡهُم مَّن قَضَىٰ نَحۡبَهُۥ وَمِنۡهُم مَّن يَنتَظِرُۖ وَمَا بَدَّلُواْ تَبۡدِيلٗا ﴿٢٣﴾ (4)

ژباړه: په دې مؤمنانو کي داسي کسان سته، چي د الله ﷻ سره يې کومه ژمنه کړې وه په هغه کي رښتني وختل داسي دي، چي خپل نذر يې پوره کړ، (يعني شهيدان سول) او ځني د پوره کولو په موخه انتظار کوي او ددوی د ارادو په بدلولو کي هيڅ بدلون نسي راتلای په بدلولو سره.

په بل ځای کي الله ﷻ فرمايي:

وَٱلسَّٰبِقُونَ ٱلۡأَوَّلُونَ مِنَ ٱلۡمُهَٰجِرِينَ وَٱلۡأَنصَارِ وَٱلَّذِينَ ٱتَّبَعُوهُم بِإِحۡسَٰنٖ رَّضِيَ ٱللَّهُ عَنۡهُمۡ وَرَضُواْ عَنۡهُ وَأَعَدَّ لَهُمۡ جَنَّٰتٖ تَجۡرِي تَحۡتَهَا ٱلۡأَنۡهَٰرُ خَٰلِدِينَ فِيهَآ أَبَدٗاۚ ذَٰلِكَ ٱلۡفَوۡزُ ٱلۡعَظِيمُ ﴿١٠٠﴾ (5)

(4) سورة احزاب ، الاية: ٢٣

(5) سورة التوبة الاية :١٠٠

ژباړه: کوم مهاجر او انصار (، چي په ايمان راوړلو کي تر نورو ) مخکي دي او ځومره خلګ، چي په اخلاص سره ددوی تابعداري کوي الله جل جلاله ددې ټولو څخه راضي دئ او دوی دالله ﷻ څخه راضي دي الله ﷻ ددوی لپاره جنتونه برابر کړي دي، چي دونو ( تر ښاخو ) لاندي به يې (ويالې ) بهيږي او هميشه به په جنت کي وي دغه هم لويه کاميابي ده.

په دغه آياتو کي الله ﷻ د اصحابانو رضي الله عنهم څخه خپله خوښي څرګنده کړې ده تردې به نو لويه خوشالي چيري وي حقيقي رب دهر څه مالک او خالق دچا څخه دخوشالۍ اورضايت څرګندونه کوي.

همدا ډول رسول الله0 دمبارکو اصحابانو رضي الله عنهم دفضيلت او دميني داظهار اړونده زياتي ويناوي فرمايلي دي دمثال په ډول رسول الله0 فرمايي:چي زما څخه وروسته په ابو بکر رضي الله عنه او عمر رضي الله عنه پسي اقتدا کوئ. په يوه حديث کي راغلي دي: زما اصحاب رضي الله عنهم د ستورو په شان دي په هر يوه پسي چي اقتدا وکړئ سمه لاره به پيدا کړئ[6].

---

[6]: « مثل اصحابي مثل النجوم ، من اقتدى بشيء منها اهتدى » رواه مسند الشهاب القضاعي ورقم الحديث:١٢٤١ وايضاً رواه مسلم وكذا الامام احمد في مسنده. قال شيخ الحديث مولانا محمدزكريا رحمه الله في فضائل الصحابة التي ذكره في كتابه الحكايات الصحابة ان هذا الحديث قدتكلم فيه المحدثين ونقل قول الملا علي قاري رحمه الله في تائيده ولم اجد قول الملا علي قاري رحمه الله علي طريق الذي ذكر مولانا رحمه الله بل وجد بتغير فلاجل التغير نقلت قوله في كتابه المرقاة شرح المشكاة المصابيح: قال ملاعلي قاري رحمه الله:... وقال رسول الله اصحابي كالنجوم اي فاقتدوا بهم جميعهم او باكثرهم وان لم يتيسر فبايهم اقتديم اهتديتم وكانه اخذ من هذا بعضهم فقال من تبع عالما لقي الله سالما رواه رزين قال ابن الربيع اعلم ان حديث اصحابي كالنجوم بايهم اقتديتم اهتديتم اخرجه ابن ماجه كذا ذكره الجلال السيوطي في تخريج احاديث الشفاء ولم اجده في سنن ابن ماجه بعد البحث عنه وقد ذكره

حضـرت انـس ﷺ فرمـايي، چـي نبـي ﷺ فرمـا يلي دي:زمـا اصحاب ﷺ دا سي مثال لري لکه په خوراک کي مالگه چي دغه خوراک بې له مالگي ښه کېداى نسي. نبي ﷺ فرمايي: زما د اصحابو ﷺ په اړه دالله ﷻ څخه وويرېږئ دوى د ملامتيا نښه مه جوړوئ څوک چي ددوى سره محبت کوي هغه زما سره محبت کوي او څوک چي ددوى سره کينه لري هغه زما سره کينه لري چاچي دوى ته تکليف ورکړى هغه ماته تکليف راکړى چاچي ماته تکليف راکړى هغه الله ﷻ ته تکليف ورکړى او څوک چي الله ﷻ ته تکليف ورکړي د الله ﷻ په راکشولو کي به راسي.

نبي ﷺ فرمايي: زما اصحابو ﷺ ته ښکنځل مه کوئ په تاسو کي که څوک د احد د غره سره برابر سره زر خيرات کړي نود اصحابو ﷺ د يوه يا نيم مد ثواب نسي لاسته راوړلاى. نبي ﷺ فرمايي: څوک چي اصحابو ته ښکنځل کوي پر دغه کس د الله ﷻ ، ملائکو او ټولو انسانانو لعنت دئ

---

ابن حجر العسقلاني في تخريج احاديث الرافعي في باب ادب القضاء واطال الكلام عليه وذكر انه ضعيف واه بل ذكر عن ابن حزم انه موضوع باطل لكن ذكر عن البيهقي انه قال ان حديث مسلم يؤدي بعض معناه يعني قوله النجوم امنة للسماء الحديث قال ابن حجر صدق البيهقي وهو يؤدي صحة التشبيه للصحابة بالنجوم اما في الاقتداء فلا يظهر نعم يمكن ان يتلمح ذلك من معنى الاهتداء بالنجوم قلت الظاهر ان الاهتداء فرع الاقتداء قال وظاهر الحديث انما هو اشارة الى الفتن الحادثة بعد انقراض الصحابة من طمس السنن وظهور البدع ونشر الجور في اقطار الارض اه وتكلم على هذا الحديثابن السبكي في شرح ابن الحاجب الاصلي في الكلام على عدالة الصحابة ولم يعزه لابن ماجه وذكره في جامع الاصول ولفظه عن ابن المسيب عن عمر بن الخطاب مرفوعا سالت ربي الحديث الى قول اهتديتم وكتب بعده اخرجه فهو من الاحاديث التي ذكرها رزين في تجريد الاصول ولم يقف عليها ابن الاثير في الاصول المذكورة وذكره صاحب المشكاة وقال اخرجه رزين.المرقاة المفاتيح شرح المشكاة المصابيح.مؤمن اقبال

او د دغه سړي نه فرض قبليږي او نه نفل. نبي ﷺ فرمايي: چي الله ﷻ ټوله انسانان راچڼ کړل د انبياوو عليهم السلام څخه پرته په دوی ټولو کي يې دغه څلور کسان غوره کړه: حضرت ابوبکر رضي الله عنه، حضرت عمر رضي الله عنه، حضرت عثمان رضي الله عنه او حضرت علي رضي الله عنه او دوی يې زما پر ټولو اصحابانو رضي الله عنهم باندي بهتر وګرځول ابو سختيياني رحمه الله فرمايي: کوم چاچي د ابوبکر رضي الله عنه سره محبت وکړی هغه خپل دين سم کړ. چاچي د عمر رضي الله عنه سره محبت وکړ نو د دين روښانه لاره يې پيدا کړه. چاکه د عثمان رضي الله عنه سره محبت وکړ د الله ﷻ په رڼا سره روښانه سو او چاچي د علي رضي الله عنه سره محبت وکړ دغه کس نو د دين رسۍ ونيوله. څوک چي د اصحابانو رضي الله عنهم ستاينه کوي دغه کس د نفاق څخه پاک دئ، څوک چي د اصحابانو رضي الله عنهم بي ادبي کوي منافق، بد عتي او د سنتو مخالف دئ زما سره داويره ده چي هيڅ عمل به قبول نسي تر څو د اصحابانو رضي الله عنهم سره محبت پيدا نسي او د دوی په اړه يې زړه پاک نسي. په يوه حديث کي راغلي دي چي نبي ﷺ فرمايي: زما د اصحابانو، زومانو او نورو اصحابانو په اړه زما لحاظ کوئ څوک چي د دوی په اړه زما لحاظ وکړي الله ﷻ به د دغه کس په دنيا او آخرت کي حفاظت وکړي او څوک چي زما لحاظ ونه کړي الله ﷻ د هغه کس څخه بېزاره دئ او د چا څخه چي الله ﷻ بېزاره سي کېدای سي چي پر يو څه باندي ونيول سي د نبي ﷺ دا ارشاد هم دئ چي نبي ﷺ فرمايي څوک چي زما د اصحابو رضي الله عنهم په اړه زما لحاظ وکړي د قيامت په ورځ به زه د ده محافظ يم. په يوه بل حديث کي راغلي دي چي نبي ﷺ فرمايي څوک چي زما د اصحابو رضي الله عنهم په اړه زما لحاظ ونه کړي حوض کوثر ته به رانه وستل سي ما به يوازي د ليري څخه ووينې. سهل بن عبد الله رحمه الله فرمايي څوک چي د نبي ﷺ د

اصحابانو رضي الله عنهم تعظيم او درنښت نه کوي هغه پر نبي ﷺ ايمان نه دئ راوړی.(7)

حاصل دا چي څوک د اصحابانو رضي الله عنهم پر قدم باندي قدم ږدي او دين خپل مقصود ګڼي د اسي مسلمان ته شعوري او کامل مسلمان ويل کېږي، په دغه ډول مسلمانانو پسي هر چيري کافرانو ليښي رانغښتي دي او هيچري دوی ته د خپل دين حق نه ورکوي ؛ ځکه په نړۍ کي يوازني دين د اسلام دين دئ، چي حتماً پرنورو بری پيدا کوي دا حقيقت دوی درک کړی دئ، نور دينونه هيڅکله په معنوي زور سره بری نه سي تر لاسه کولای نو ځکه کافران هغوی ته هيڅ نه وايي د هغوی معتقداتو ته احترام کوي، هندوان، چي ځانونه په اور سوځي دې کار ته د بشر د حقوقو خلاف نه وايي، عيسوي پاپان، چي کله رياضت کوي نو کلونه، کلونه په ځاهانو کي او سيېږي خوراک نه کوي، دې کارونو ته د بشر د حقوقو مخالفت نه وايي ځکه دوی ته معلومه ده، چي د هغوی دين هيڅکله هغه نقطې ته نسي رسېدای، چي بيا پردوی کړۍ راتنګه کړي د ټولو کافرانو هدف دا دئ، چي يا ټول مسلمانان له منځه يوسي او يا شعوري مسلمانان له منځه يوسي.

حاصل دا چي شعوري مسلمان هغه چا ته ويل کېږي، چي په لاندني آيت يې عمل کړی وي، چي الله جل جلاله فرمايي:

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ ادْخُلُواْ فِي السِّلْمِ كَآفَّةً (سورة بقرة الاية: ٢٠٨)

7: مرقاة المفاتيح ، باب مناقب الصحابة رضي الله عنهم ،مسند الشهاب القضاعي ، باب مثل اصحابي مثل النجوم ، من اقتدى بشيء منها اهتدى ، مسند احمد ، باب مناقب الصحابة رضي الله عنهم الصحيح مسلم ، باب مناقب الصحابة رضي الله عنهم7111111112 7111111112

ژباړه: اې مؤمنانو ! په اسلام کي په تمامه معنا(په پوره توګه)داخل سئ.
يعني د اسلام ټوله امرونه ومنئ، څه، چي د اسلام غوښتنه ده هغه پوره کړئ.

**موروثي مسلمان**:

هغه مسلمان ته ويل کېږي، چي تش د اسلام دلفظ سره دومره اشنا وي، چي زه د مسلمانانو په ډله کي داخل يم او د اسلام دين ديوې سياسي ډلې او يا يوه ګوند په څېر دئ، چي زه هم پکښي داخل يم، په دې باندي پوه نه وي، چي د اسلام دين د مسلمان څخه غوښتني لري، د اسلام دين خدمت غواړي، اسلامي چوپړ بايد ديوه احساس له مخي وسي حال دا چي دغه موروثي مسلمان د اسلام غوښتني ديوه رواج په شکل پېژني ؛ خو د احساس له مخي يې نه ترسره کوي همدا وجه ده، چي همدا سي مسلمان په ذهن کي د اخبره لري، چي دژوند څخه مقصد خوند او ترقي ده په هره طريقه، چي وي که د اسلام سره مخالفه طريقه وي او که موافقه وي ځکه دده له انده د اسلام اساسات تش درواج او دود بڼه لري که پاته سي څه خبره نه ده لکه ديو عادي رواج په پاتېدو، چي تاوان نه پېښېږي همدا ډول د اسلام کومه غوښتنه يا امر، چي پاته سي هم څه تاوان نه پېښېږي يا په بل عبارت، چي په اوس وخت کي د اسي فکر ته سيکولريزم ويل کېږي.
حاصل دا چي همدا ډول کس ځان د اسلام له مقصود څخه دباندي شي بولي.

ټوله نړۍ مسلمانانو ته متوجه ده، چي ټول مسلمانان په همدې مفکوره واړوي ځکه دوی ته، چي کومه ستونزه پېښېږي هغه يوازي د شعوري مسلمانانو څخه پېښېږي د دې ښه مثال په تېره واقعه کي تېر سو، چي د موته په غزا کي اسلامي پوځ مخکي ولاړی نو ورته معلومه سوه، چي د روم پاچا هرقل هم د سلو زرو پوځيانو سره مقابلې ته راروان دئ د دې خبر په اورېدو سره اصحابان رضي الله عنهم فکر من سول، چي

ددې دومره لوی طاقت مقابله شروع کړي او که رسول الله ﷺ ته خبرورکړي په دغه حال کي عبدالله بن رواحة رضي الله عنه په لوړ اواز وويل: اې خلګو ! تاسو د کومي خبري څخه وېرېږئ ؟ تاسو د کوم مقصد لپاره راوتلي ياست ؟ ستاسو مقصد شهيد کېدل دي موږ هيڅ کله د قوت او د سړو د ډېروالي په زور نه يو جنګېدلي بلکي موږ يوازي د هغه دين په زور جنګېدلي يو چي د هغه دين په وجه الله جل جلاله موږ ته عزت راکړی دئ. مخ په وړاندي ځئ ددوو کاميابيو څخه به يوه خامخا لاسته راوړئ يا به برياليتوب وي او يا به شهادت وي.

کافرانو هم دغه حقيقت درک کړی، چي مسلمانان که هرڅومره لږ وي برياليتوب تر ګوتو کوي ځکه دوی ته مرګ او ژوند دواړه په يوډول اهميت لري مړيني ته شهادت وايي کاميابي يې بولي او ژوندي پاته کېدو ته غزا وايي هم يې کاميابي بولي ددې خبري يو بل مثال دبېر معونة په سريه کي هم دئ، چي اويا کسه داسي اصحابان پکښي شهيدان سول، چي ټوله يې د قرآن عالمان او حافظان وو په دغه شهيدانو کي د حضرت ابوبکر رضي الله عنه غلام عامر بن فهيره رضي الله عنه هم و دده مبارک قاتل جبار بن سلمي وايي: ما چي کله عامر بن فهيره رضي الله عنه په نېزه ووهی ده وويل: (وَ الله فُزْتُ) يعني په الله جل جلاله مي دي قسم وي، چي زه کامياب سوم ددې څخه وروسته ما وليد ، چي دده جسد و اسماني طرف ته پورته سو زه ډېر حيران سوم ددې څخه وروسته ما د خلګو څخه وپوښتل: ، چي دغه سړی ما په نېزه ووهی دستي مړ سو خو بيا هم دی وايي، چي په الله جل جلاله قسم، چي زه کامياب سوم دده کاميابي نو په څه شي کي ده؟ خلګو راته وويل: دده کاميابي په جنت کي ده پدې وجه زه مسلمان سوم.(8)

---

(8) ذکره مولانا محمد زکريا نور الله مرقده بحوالة الخميس .

همدا وجه ده، چي کافران کوشش کوي، چي د مسلمانانو څخه دين بيخي له منځه يوسي او يا يې تش په نامه ورپريږدي، حاصل دا چي تر هغه بريده مسلمانان برياليتوب نه سي ترګوتو کولای څو، چي ځانونه يې شعوري مسلمانان نه وي جوړ کړي.